

## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




**د پوهنې وزارت**

# هیوادپالنه

## اتم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** هېوادپالنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومو دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اتم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af





## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست

# د لوی الله ﷻ ستاینه



الله پاک ﷻ پر موږ بې شمېره پېرزوینې کړې دي. له دغو پېرزوینو څخه يې لومړۍ پېرزوینه دا ده چې انسانان يې پیدا کړي یو. په انسانانو کې يې بیا مسلمان پیدا کړي یو. اسلام د ځمکې پر مخ د آسماني ادیانو وروستی دین او قانون دی چې د نړۍ هېڅ قانون ورسره سیالي نشي کولای او نن سبا يې د ځمکې پر مخ شاوخوا (۱۷۰۰) میلیونو پورې خلک لارویان دي.

دا او دغو پېرزوینو ته ورته په زرگونو نورې پېرزوینې خدای پاک زموږ په برخه کړې دي. د دغو پېرزوینو په وړاندې باید د هغه پیرزوکوونکي او مهربان خدای ستاینه وکړو؛ هر کار د هغه ذات ﷻ په نامه پیل کړو؛ د هغه د قانون (اسلام) له مخې يې تر پایه پرمخ بوځو او د دغه کار په ترسره کولو کې يې مرسته وغواړو. موږ هم د هېواد پالنې د لوست کتاب د لوی خدای ﷻ په ستاینه پیلوو.

## حمد

دا اغاز مې په نامه د هغه خدای دی
چې يې نوم گره گشای د شاه گدای دی

د الله په نوم نو مړ هغه لایق دی
چې خالق په یوه کن د خلایق دی

دلالت دغه نامه په هغه ذات کا
چې یوازې بادشاهي د کاینات کا

نه يې مثل په جهان کې نه مثال شته
نه يې ځوک په کاروبار کې سم و سیال شته

که تمام جهان مانع د یوه کار شي
چې دده په اراده کې نه وي نشي

که جهان واړه کافر یا مسلمان شي
نه يې سود په کار د چا شي نه يې زیان شي

سره گلونه زرغونه وي په شنه ښاخ کې
شنه گیاه خوري چینجي په سنگ لاخ کې

په صدف کې د اوبو څاڅکی گوهر کا
په رحم کې د نطفې قطره بشر کا

که نغمه د لااله الا الله ده
غربېدلې د غیرت په گذرگاه ده



## ځرګندوني

د حمــد ویونکــی د پښــتو ژبې لوی او ځلېدونکی ســتوری، د دولســمې هجری پېړی شــاعر، عبدالحمیــد مومنــد دی. عبدالحمیــد مومنــد د خپلــې نازکخیالی او شــعري ظرافــت له مخې د(موشګاف) لقب ترلاسه کړی دی. همدا راز ځینې خلك ورته حمید مومند، حمید ماشوخېل، حمیدخان او آن حمید بابا هم وايي. د هغه شعرونه به تل د ادب په آسمان کې ځلېږي.

عبدالحمیــد مومند پورته حمد د الله ﷻ په ســپېڅلي نامه پيــل کړی دی. هغه يې د ټولو مخلوقاتو پيــداکوونکــی او د ټولو ســتاينو وړ او لايق بللی دی. حميد مومند ټــول کارونه د الله ﷻ په ارادې پــورې اړوند بولي او د ټولو موجوداتو روزي رســوونکی يې يادکړی چې په ځمکې، آســمانونو، ســمندرونو يا د ډبرو دننه او بهر اوســېږي. د نړۍ ټول کارونه د هغه ذات په امر رامنځته کېږي او له منځه ځي. له دې امله يوازې هغه سپېڅلی ذات د ټولو ستاينو او صفاتو لايق دی او بس.




زده کوونکي دې په دووډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د کار په پيل کې د خدای پاك د نامه د يادولو او ستاينې په اړتيا او دويمه ډله دې((د الله تعالی د پيرزوينو)) يادونه وکړي او لنډيز دې يې د استازو په واسطه ټولګيوالو ته بيان کړي.




۱. حمد څه ته وايي او ولې بايد هر کار د الله تعالی په نامه پيل کړو؟

۲. د لاندې بيت معنا په ساده نثر بيان کړئ.

کــه جهــان واړه کافــر يا مسلمـان شي　　　نــه يې ســود پــه کار د چا شي نه يې زيـان شي

۳. په کايناتو کې د الله تعالی د قدرت يوه بېلګه ووایاست.




زده کوونکي دې د لاندې شعر د مفهوم په پام کې نيولو سره يوه مقاله وليکي.

کــــه نغمــــه د لااله الا الله ده
غـــرېدلې د غيـــرت پـــه ګذرګاه ده

## د حضرت محمدﷺ ستاینه



حضــــرت محـــــمدﷺ د اللهﷻ وروســــتی پیغــــــبر دی. هغهﷺ بشپړ انسان او د ځکمې پر مخ د ټولو انسانانو لارښود و. د بعثت په نــــــور یې د شــرک، جهل او تورتم پردې له منـــځه یوړې.

له پیغمبرﷺ سره مینه او په کړنو یې عمل کول د هر مسلمان له وجایبو څخه ګڼل کېږي.

د لاندې شعر شاعر د نبي کریمﷺ ځینې صفات په خـــپله شاعرانه ژبه بــــیانوي.

نوی لمر د نبوت پر اســـــمان راغــــــی
چــې دوران د پــاک نبي پر جهـــان راغی

لکه وغـــوړېږي ګل پر ګلـــــستان کې
وار له واره هسـې شکل خــزان راغــی

ســــتا د حسن تمـــاشا ته محــمده
عـدن راغـی یمـــن راغی کنعـان راغی

خـــير دې ولاړو سمـــرقند او بـــخارا ته
چې بطي ســره محبوب د ســبحان راغــی

پـه عراق او په حجاز کـــې آواز پـــریوت
چــې نبي آخـر زمان په ښـه شـــان راغی

نـــیک او بد حق او باطل ســره معلوم شو
دا پــر مــوږ باندې له ربه احـــسان راغــی

د تورات، زبور، انجیل، خبـــــرې پرېږده
چــې صاحـــب د مدینـې ته قـرآن راغی

بهایي جان رحمه الله

## لنډيز

د الله ﷻ له لوري د وروستي پيغمبر په توګه د حضرت محمد ﷺ بعثت يو ستر انقلاب او بنسټيز بدلون و چې انسانان يې د ژوند په ټولو برخو کې خير او نيکۍ ته راوبلل. پيغمبر ﷺ پر شرك او ناحقو معبودانو د بطلان کرښه را وکښله، د هغه پر ځای يې توحيد او د يوه الله ﷻ عبادت ته خلك راوبلل.

حضرت محمد ﷺ د علم او عدالت پر نور د ناپوهۍ او ظلم پردې څيرې کړې او بشريت ته يې سوله او امنيت ډالۍ کړ.

د ژوند په ټولو کارونو کې د پيغمبر ﷺ لارويتوب او د هغه په لارښوونو عمل کول د نېکمرغۍ او سعادت يوازينۍ لار ده.

مسلمانانو ته خپل پيغمبر ﷺ ګران دی. د نړۍ او اخرت د خير او ښېګڼې د ترلاسه کولو لپاره په ورورولۍ او يوه زړه هلې ځلې کوي.




ـ زده کوونکې دې د هغه ستر انقلاب او بدلون په اړه، چې د پيغمبر ﷺ له بعثت وروسته په نړۍ کې منځته راغی، په ډله ييزه توګه په خپل منځ کې بحث وکړي.

ـ زده کوونکې دې په پنځو ډلو وويشل شي. هره ډله دې د داسې لسو کارونو نومونه وليکي چې پکې د پيغمبر ﷺ لارښوونې شوې وي.




د لوست له متن څخه په ګټې اخيستنې سره د هغه انقلاب او بدلون په اړه چې د پيغمبر ﷺ له بعثت څخه وروسته د بشريت په ژوند کې منځته راغی، يوه مقاله وليکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.



# هېواد او هېوادپالنه



ـ وطن يا هېواد څه ته وايي؟

ـ انسانان ولې له خپل هېواد سره مينه لري؟

ـ هېواد پالنه څه معنا او هېوادپال سړی کوم صفتونه لري؟

د دغه لوست په لوستلو به وکولای شو، پورتنيو پوښتنو ته سم ځواب ووايو.

هېواد د انسانانو د زوکړې او ژوند ټاټوبی دی، هلته خاپوړې کوي، لويېږي، له اوبو، هوا، خوړو او مېوو څخه يې د بدن غوښــه، هډوکي او وينه جوړېږي. له دې امله انسانان له خپل هېواد سره مينه لري او ساتي يې.

هېواد له مور ســره پرتله کوي، څکه انســان له مور څخه پيداکېږي او د مور له وجود څخه نړۍ ته ســترګې پرانيزي. مور په خپلو شــېدو او د تن په غوښو د خپل اولاد پالنه کوي، خپله خوشحالي، هوسايي او راحت د هغه تر سر ځاروي.

هېــواد مــور ده، ځکه د مور او اولاد اړيکې لــه ډېرو قوي اړيکو څخه ګڼل کېږي. اولاد بايد په هر حالت کې د مور حرمت وساتي او په ټول وس د هغې په چوپړ کې وي.

هېواد پالنه هغه عاطفه او احساس دی، چې انسان خپل هېواد او د زېږېدلو ځای ته راکاږي، له هغه ځای سره چې انسان پکې نړۍ ته سترګې غړولي او لوی شوی، مينه کوي.

د هېــواد له هــوا، اوبو، خوړو او مېوو او نورو نعمتونو څخه ګټه اخيســتل، ګډ ژوند کول او نور د دې لامل کېږي، چې د انســان او هېواد تر منځ د زړه له کومې قوي اړيکه او عاطفه پيداشــي چې هېواد پالنه ورته ويل کېږي.



عاطفه او هېواد پالنه انســان دې ته هڅوي چې د هېواد او خلکو پر وړاندې ځان مسـؤول وګڼي او د وطن د مور د مادي او معنوي سوکالۍ او پرمختګ لپاره هڅه وکړي.

د اسلام دین د یو بشپړ نظام په توګه خیرغوښتنې او ګټورو کارونو ته انسان رابولي او هڅوي. هېواد او هېوادوالو ته خیر رسـول، چې انسان ورســره انساني، دیني او دګاونډیتوب اړیکې لري، د دغه ګټورتوب او خیر رسولو مهم جز دی، چې یو مسلمان انسان باید پر هغو پابند وي.

## لنډیز

هېواد پالنه یوازې وینا نه، بلکې عمل دی. رښتیني هېوادپالنه داده چـې انسان باید د خپل هېواد د ودانولو لپاره هڅه وکړي او له هر ډول ورانۍ او زیان رسولو څخه یې مخنیوی وکړي. د خپلواکۍ، آزادۍ، ځمکنۍ بشپړتیا ساتنه د هېواد پالنې له مهمو نښو څخه ګڼل کېږي. رښتینی هېوادپال هغه څوک دی چې د هېواد له آزادۍ څخه د دفاع او ملاتړ په لاره کې هر ډول ځان تېرېدنې ته چمتو وي. مسلمان هېوادپال د خپل هېواد د مشروعو حقونو په لاره کې هڅه او هاند کوي.




زده کوونکي دې د هېواد په علمي او معنوي ودانولو کې د ښــوونځي د زده کوونکو د ونډې په اړه خپل اندونه یو له بل سره شریک کړي.




١- د هېواد پالنې مفهوم بیان کړئ.
٢- ولې هېواد له مور سره پرتله کېږي؟
٣- د لوست له متن څخه په ګټه اخېستلو د یوه انسان د هېوادپالنې درې صفتونه بیان کړئ.
٤- یو مسلمان انسان ولې باید له خپل هېواد سره مینه ولري؟




په خپله سیمه کې د هغو کسانو نومونه واخلئ چې خپلې سیمې او هېواد ته یې د قدر وړ خدمتونه کړي وي.

# ملي یووالی



ملي یووالی د ولســونو د پیاوړتیا نښــه ده. هغه ملت چې غواړي قوي او ســرلوړی وي، له یووالي پرته بله لاره نه لري. په دغه لوســت کې د ملي یووالي د مفهوم او ارزښــت او بې شمېرو گټو په اړه مطلــب لولو.

د ملــي یووالــي اصطلاح له دوو کلمو (ملي) او (یووالي) څخه جوړه شــوې ده. یووالی د بېلا بېلو شــیانو د یو ځای کېدو په معنا او د ملي کلمه، د ملت له ریښــې څخه اخیســتل شوې ده او هغه له دولت او هېواد سره د انسان اړیکې او پیوستون ښیي چې اوسېږي پکې او تابعیت یې لري.

ملت د هغو خلکو ټولگــه ده چې د یوه دولت په منل شــوو جغرافیایي بریدونو کــې یوځــای ژوند کوي. د دیني، تاریخي، فرهنگي او ټولنیزو گډو منافعو ته د ژمنتیا پر بنسټ تر یوه بیرغ لاندې د یو هېواد د قومونو، نژادونو، ژبو او بېلابېلو سیمو د خلکو سوله ییز ژوند کولو ته ملي یووالی وایي.

د ملي یووالي مهمې موخې د لاندې چارو پلي کېدل دي:

- د هېواد یووالي او د خلکو دیني سپېڅلو ارزښتونو ته درناوی.
- آزادي، عدالت او له توکم پالنې او امتیاز پرته د قانون پر وړاندې د خلکو برابري.
- د فــرد او ټولنــې د اقتصادي ســوکالۍ او نېکمرغۍ لپاره د ملت او حکومت ترمنځ په سیاســي اقتصادي او ټولنیزو چارو کې همغږي.
- د داسې اردو، پولیسو او مؤسساتو لرل چې د ټول ملت استازیتوب وکړي او ځانگړي قوم، نژاد او ژبې ته منسوب نه وي.

لاندې لاملونه د ملي یووالي د رامنځته کېدلو او پلي کېدلو لپاره اړین دي:



• د ګډ دين او عقيدې درلودل.
• د ټولنيزې روحيې شتون، يعنې هغه څه چې يو څوک يا يو قوم يې خپل ځان ته خوښوي، د بل چا او بل قوم لپاره يې هم خوښ کړي.
• د مشروعو او ګډو موخو شتون، چې د يوه هېواد ټول استوګن هغو موخو ته د رسېدلو لپاره ګډې هڅې وکړي.
• د قانـون پـر وړاندې د هېـواد د اتباعو ترمنځ عدالـت او برابري او د هـر ډول ظلم او ناروا له منځه وړل.
• د قانون په چوکاټ کې د خلکو لپاره د لازمو آزاديو رآمنځته کول.
• د خلکو د اقتصادي سوکالۍ او پرمختګ لپاره کار او زيار.

د اسلام دين د افغانستان د خلکو د ورورۍ يا ملي يووالي بنسټ جوړوي. د ايمان او عقيدې رېښو زموږ ملت داسـې سـره يو موټی کړی چې هېوادوال مو د هېـواد د خپلواکۍ او پرمختګ لپاره په يـوه غـږ کار کوي. د هر هېوادپال افغان دنده ده چې د ملي يووالي د ټينګښـت لپاره له ټولو قومي، نژادي، ژبنيو او سيمه ييزو تعصبونو سره جهاد او مبارزه وکړي، ځکه قوت مو په ملي يووالي کې نغښتی دی.

**لنډيز**

قرآن مجيد او د حضرت محمدﷺ ارزښـتناک حديثونه مسـلمانانو ته په ملي يووالي امر کوي، د بېلګـې په توګه، خدای پاک په قـرآن کريم کې فرمايي: ﴿وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ﴾ يعنې، ټول د خدای پاک پر قانون منګولې ولګوئ او بې اتفاقي مه کوئ.
د افغانسـتان د اسلامي جمهوري نظام د اساسي قانون په څلورمه ماده کې د افغانستان ملت داسې تعريفوي: "د افغانسـتان ملت له هغو ټولو افرادو څخه عبارت دی چې د افغانسـتان تابعيت ولري، د افغانسـتان ملت له پښـتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، بلوچ، پشه يي، نورستاني، ايماق، عرب، قرغيز، قزلباش، ګوجر، براهوي او نورو قومونو څخه جوړ دی. د افغان کلمه د افغانسـتان د ملت په هر غړي اطلاق کيږي."






زده کوونکي دې په پنځه کســیزو ډلو وویشــل شي. هره ډله دې د ملي یووالي د ګټو او د بې اتفاقۍ او اختلاف د زیانونو په اړه یو لســت جوړ کړي. په پای کې دې یو یو زده کوونکی د خپلې ډلې په استازیتوب خپل چمتو کړی لست په ټولګي کې ولولي.




١- د ملي یووالي مفهوم بیان کړئ.

٢- د ملي یووالي مهمې موخې کومې دي؟

٣- کوم لاملونه د ملي یووالي د پیاوړتیا سبب کېږي؟

٤- د افغانستان د اسلامي جمهوریت اساسي قانون، ملت څرنګه تعریف کړی دی؟




د لوست د موضوع په اړه د خپل ګاونډ له روڼ اندو سره خبره وکړئ او په دې اړه د هغوی نظریات ولیکئ.



# آزادي څه ته وايي؟



د آزادۍ کلمه مو ډېره اورېدلې او د دغې کلمې په اړه مو ډېر څه لوستلي او اورېدلي دي. پوهانو، شاعرانو او ادیبوهانو په خپلو آثارو کې آزادي ستايلې او د نړۍ ملتونو آزادۍ ته د رسېدلو او له هغې څخه د دفاع او ساتلو لپاره هر ډول قرباني ورکړې دي.

په دغه لوست کې به ولولو چې:

- آزادي څه ته وايي او آزاد ژوند څه معنا لري؟
-آزادي څو ډوله ده؟
- د یو ملت ازادي څه معنا لري؟
- د آزادۍ ګټې څه شی دي؟

د آزادۍ کلمه د یو کار د کولو او یا نه کولو د واک لرلو ته وايي. څرنګه چې خدای پاک، انسان ته عقل او اراده ورکړې، هغه کولای شي د یوه کار د کولو یا نه کولو لاره غوره کړي.

باید پوه شــو چې مطلقه آزادي د نړۍ په هېڅ ځای کې نشــته. شــریعت او قانون د آزادۍ بریدونه ټاکلي، ځکه د قانون ونه‌ډه د بشر د کړنو لپاره د بریدونو ټاکل دي.

بې قيده او شرطه آزادي او د قانون نشتوالی په ټولنه کې د اړو دوړ سبب کېږي او هېڅ عاقل انسان هغه منلای نشي.

د شــریعت او قانون ســم پلــي کول او د هغو تر ســیوري لاندې ژوند کول لــه آزادۍ څخه د ګټې اخېستلو تر ټولو ښه لاره ده.

آزادي د انســان له عقل او ارادې ســره تړاو لري او د انسان تر ټولو لویو انساني ارزښتونو څخه ګڼل کېږي. له معنوي چارو څخه، چې د انسان او حیوان ترمنځ برید ټاکي، یو هم آزادي ده. له همدې امله څوک چې د آزادۍ په ارزښــت پوهېږي، په وږې ګېډه، لوڅ بدن او ســختو شرایطو کې ژوند کوي، خو د بل انسان تر لاس لاندې ژوند نه خوښوي.

آزادي د انســان د شــخصیت د ودې او بشــپړېدو لپــاره ډېره اړینــه ده، ځکه مرییتوب د انســان د اســتعدادونو د ودې او د هغه د شــخصیت د بشــپړېدو پر وړاندې خنډ ګرځي. همدغه مفهوم د ملتونو پر وړاندې هم رښتینی دی.

لکــه څرنګه چې آزادي د فرد لپــاره مهمه ده، د ټولنې او ملت لپاره هم مهمه ده. هغه ملتونه چې اســتقلال او آزادي نــه لري، خپل برخلیک یې په خپل لاس کې نــه دی، په دې معنا چې خپله د هېواد د چارو په اړه پرېکړه نشي کولای.

لــه همــدې امله د نړۍ ملتونه د آزادۍ او اســتقلال لپــاره هر ډول قرباني ورکوي. د اســتقلال په نشتوالي کې ظلم او ښکېلاک د هغو ځای نیسي.

د افغانســتان مسلمان ملت د نړۍ له آزادو او آزادي غوښتونکو ملتونو څخه دی چې د خپل ژوند پــه پرتمیــن تاریخ کې تل د پردیو د واکمنۍ پر وړاندې په مېړانه جنګېدلي او کله یې هم غلامي نه ده زغملې.

د آزادۍ او استقلال په نشتوالي کې د محکوم ملت ټولې مادي او معنوي پانګې د پردیو په اختیار کې لوېږي او پردي د محکوم ملت پر برخلیک واکمن وي.

د پښتو ستر شاعر او ویاړلی لیکوال، خوشحال خان خټک څه ښه ویلي دي:

ازادي تــــــر پـــــــاچهیه لا تېــــرى كا
چې د بل تر حكم لاندې شي زندان شي




زده کوونکــي دې پــه څو ډلو کــې د آزادۍ د ګټو په اړه خبرې وکړي او هره ډله دې د آزادۍ د ګټو او مرییتوب د زیانونو په اړه لست جوړ کړي.






۱- د لوست د متن په رڼا کې د آزادۍ مفهوم بیان کړئ.

۲- ولې آزادي له مهمو انساني ارزښتونو څخه ګڼل کېږي؟

۳- د یو ازاد او تر استعمار لاندې ملت ترمنځ توپیر څه دی؟

٤- ولې ملتونه د آزادۍ او استقلال د لاسته راوړلو لپاره قرباني ورکوي؟




زده کوونکي دې د لوست د متن له مخې د آزادۍ او استقلال په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.

# ملي هويت



ملي هويت څه ته وايي؟
د ملي هويت په جوړښت کې کوم عناصر او لاملونه ونډه لري؟
د ملي هويت ساتل ولې د يوه ملت لپاره اړين ګڼل کېږي؟
په دغه لوست کې به هڅه وکړو چې پورتنيو پوښتنو ته ځوابونه پيدا کړو.

د يوه ملت هويت د هغه ملت ځان پېژندنه او په شعوري توګه د هرغړي له خوا دغو پوښتنوته ځواب ويل دي چې پخوا څوک و او نن څوک دی. په بل عبارت د يوه ملت ملي هويت د هغه ملت پرونی او نننی، ديني، فرهنګي، تاريخي، ټولنيز، جغرافيايي او سياسي دريځ روښانوي.

د يوه ملت د پېژندلو بنسټيز عناصر او ملي هويت د هغه ملت دين، فرهنګ، تمدن، تاريخ، جغرافيه، ټولنې او سياست ته ويل کېږي. په دې معنا چې يادشوي عناصر د ملتونو د هويت په جوړښت کې اړينه ونډه لري، د ملتونو په رښتيني پېژندلو کې مرسته کوي او د نړۍ د نورو ملتونو په منځ کې د هغه ملت ځای په ګوته کوي.

که وغواړو د افغانستان ملي هويت وپېژنو او د يوه ملت په توګه د نړۍ د نورو ملتونو په منځ کې خپل ځای پيدا کړو، اړينه ده چې ترهرڅه مخکې دخپل ملت له دين، فرهنګ، تاريخ، تمدن، جغرافيايي موقعيت، له پخواني او اوسني ټولنيز او سياسي موقعيت څخه معلومات ولرو يا په بله وينا له خپل پرون او نن څخه سم معلومات ولرو.

د يادو شويو مطالبو په پام کې نيولو سره ويلای شو چې د اسلام مبين دين په خپلو لوړو عقايدو، لارښوونو او انسان جوړوونکو ارزښتونو د افغانستان د ولس د ملي هويت لومړنی او تر ټولو مهم

عنصر جوړوي، ځکه زموږ خلک د اسلام له پیل راهیسې پر دغه دین مشرف شوي دي. او اسلامي زده کړې او ارزښتونه د خلکو په عقایدو، اخلاقو، فرهنګ، تاریخ او ټولنیزه سیاسي اوضاع کې داسې سره ګډ شوي چې له اسلام او مسلمانۍ پرته د افغانستان د ولس لپاره بل هویت نشو پیداکولای.

د افغانستان د خلکو د ملي هویت د اسلامي عنصر سیوری داسې پراخ دی چې زموږ د ملت ټولې پرګنې تر هغه لاندې راټولې شوي. د یوې بشري کتلې په توګه ګډه تاریخي، فرهنګي، ټولنیز او جغرافیایي مخینه لري او د یو واحد او یوه موټي ولس په توګه څرګندیږي.

دا هم باید په پام کې ولرو چې اسلام زموږ ولس ته له زمان او مکان پرته د تلپاتې ځانګړتیاوو پربنسټ، ژور تاریخي هویت ورکړی او د هغه پیاوړتیا، تداوم او تسلسل په راتلونکې زمانه او نسلونو کې ساتي، په دې معنا چې د ژبې، سیمې، قوم او... اختلاف نشي کولای د دغه ملت د خلکو نننۍ او سبانۍ ورورګلوي ټکنۍ کړي.

له اسلام وروسته تاریخي، فرهنګي، ټولنیز، جغرافیایي موقعیت او ټولنیز حالت هم زموږ د خلکو د ملي هویت په جوړښت کې ونډه لري؛ په دې معنا چې پورتني ګډ او یو خپل توکي د نړۍ د ملتونو په منځ کې د افغانستان د ملت ځای په ګوته کوي.

د افغانستان ټول پخواني اساسي قوانین او د افغانستان د اسلامي جمهوریت اوسنی اساسي قانون زموږ د هیواد پر اسلامي هویت ټینګار کوي. زموږ د اساسي قانون په دویمه ماده کې راغلي: "د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت دین د اسلام سپېڅلی دین دی"

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون دریمه ماده زموږ د هیواد پر اسلامي هویت پرټینګار په صراحت حکم کوي چې په افغانستان کې هېڅ قانون د اسلام له احکامو او ارزښتونو سره مخالفت نشي کولای. په افغانستان کې هېڅ قانون نشي کولای د اسلام د سپېڅلي دین د عقایدو او احکامو مخالف وي. له اسلام وروسته افغانیت د افغانستان د ملي هویت دویم عنصر دی.

د اساسي قانون څلورمه ماده زموږ د هیواد د قومونو له یادولو وروسته د افغانستان د ملت افغاني هویت داسې بیانوي: "د افغانستان د ملت پر هر غړي د افغان کلمه اطلاق کېږي."

ملي هویت د یو ولس د بیدارۍ نښه او د قوت او یووالي راز دی. موږ د یو خپلواک ملت په توګه په خپل اسلامي او ملي هویت ویاړو او د خپل ځان په شان د خپل ملي هویت ساتنه کوو.




زده کوونکي دې په پنځه کسیزو ډلو وویشل شي او د افغانستان د خلکو د ملي هویت په اړه دې په خپلو کې خبرې وکړي.




۱- د ملي هویت مفهوم بیان کړئ.

۲- ملي هویت له کومو عناصرو جوړېږي؟

۳- د افغانستان د ملت ملي هویت څه شی دی؟

٤- د افغانستان د اسلامي جمهوریت اساسي قانون زموږ د هېواد او خلکو د ملي هویت په اړه څه وایي؟




زده کوونکي دې د اساسي قانون دویمه، دریمه او څلورمه ماده په یاد کړي او د افغانستان د ملي هویت د عناصرو او ارزښت په اړه دې یوه مقاله ولیکي چې ترلسو کرښو لږه نه وي.





# اسلام او هېوادپالنه



انسان په فطري توګه له خپل هېواد سره مینه لري. اسلام د فطري دین په توګه د انسان ټولو طبیعي غوښتنو ته پاملرنه کړې او د هغو د مثبتې ودې لپاره یې نظام او چوکاټ جوړ کړی دی.

په دغه لوست کې د هېواد پالنې د فطري احساس په اړه د اسلام دریـــځ مطـالعه کوو.

د هېواد په اړه د اســلام نظر تر هغه څه په وار وار پراخ دی چې د انســان په فکر کې دی. اســلام په دغه مهم حقیقت ټینګار کوي چې ټول انسانان د یوه پلار او مور اولادونه دي. الله تعالی ځمکه د انسانانو د ژوند لپاره پیدا کړې او دنده یې ورته سپارلې، چې د ځمکې د ودانولو لپاره هڅې وکړي. لــه دې املــه له څو لوریو باید دغــې موضوع ته وګورو. له یوه نظره، ټوله ځمکه انســان ته د هېواد حیثیت لري. مســلمان انســان له خپلې ځمکې او چاپېریال ســره د الله ﷻ د لویو نعمتونو په توګه اړیکې ټینګوي او د ځمکې د ودانولو او د خلکو د خیر غوښتنې او بریالیتوب لپاره هڅه کوي.

دویم نظر دا دی چې د مسلمانانو هېواد له هغه خاورې څخه عبارت دی چې ډېر اوسیدونکي یې مســلمانان وي. مسلمان انســان د ایمان د غوښتنې له مخې له نورو اسلامي هېوادونو سره د زړه له کومې مینه لري. د هغه هیوادونو د اوسیدونکو د سوکالۍ او پرمختګ او د کورنیو او بهرنیو د دفاع په موخه مرسته خپله شرعي دنده وبولي.

دریم نظر دا دی چې هېواد د اسلام له مخې هغه ټاکلې سیمه ده، چې د انسان د زوکړې او دایمي اســتوګنې ځای وي. مســلمان د نړۍ ټولو وګړو ته د خیرغوښــتنې او له اسلامي امت سره د مینې ترڅنګ د خپلې سیمې د ودانۍ او پرمختګ ته د لومړیتوبونو په سر کې ځای ورکوي او د زړه له

کومي ورته کار او خدمت کوي.

د هېواد پالنې رښتینې معنا د هېواد د خیر او سلامتۍ او پرمختګ لپاره هڅه کول دي. رسول اللهﷺ د خپلې استوګنې د ځای، یعنې له مکې معظمې سره ډېره مینه لرله او د هېواد پالنې مینه یې په احساساتو کې لیدلای شو. کله چې حضرت محمدﷺ د قریشو د مشرکینو د تېري او ناروا له امله هجرت او د خپل وطن او د زېږېدلو د ټاټوبي پرېښودلو ته اړ شو، په هغو شېبو کې چې مکه معظمه یې پرېښوده، سترګې یې له اوښکو ډکې وې، ویې فرمایل: ((ای مکې، ته ماته د الله ﷻ ډېره ښه او ګرانه ځمکه یې، که ستا اوسېدونکو زه نه وای بهر کړی، نو هېڅکله به هم له دغه ځایه نه وای تللی.))

د رسول اللهﷺ په دغه وینا کې د هېوادپالنې تر ټولو پاک او نازک احساس ځلېږي. همدا راز کله چې حضرت محمدﷺ مدینې منورې ته هجرت وکړ او هغه ځای یې د دایمي استوګنځي په توګه وټاکه، دعا به یې کوله چې الله ﷻ دې مدینه هم د مکې په شان موږ ته ګرانه کړي. د بخاري شریف په یو حدیث کې رسول اللهﷺ فرمایي: ((اللهم حبب الینا المدینة کحبنا مکة او اشد... .)) یعنې ای خدایه، مدینه راته لکه مکه او تر مکې هم ډېره ګرانه کړې. همدا راز حضرت محمدﷺ دعا کوله، چې الله تعالی په مدینه منوره کې برکت واچوي.

په بل حدیث کې راغلي چې حضرت محمدﷺ د مدینې د خرما د پخېدلو په پیل کې داسې دعا کوله: ((اللهم بارک لنا فی مدینتنا و فی ثمارنا...)) یعنې، ای الله، زموږ په مدینه او د مدینې په مېوو کې برکت واچوه.

د حضرت محمدﷺ په دغو ویناوو کې د هېواد او د زېږېدلو له ځای سره پاکه مینه او ګرانښت نغښتی دی. که د رسول اللهﷺ دغه احساسات او ویناوې له یوې خوا د یوې پاکې انساني عاطفې ښکارندوی دي، له بلې خوا د هر مسلمان لپاره یو پیغام دی، چې باید له خپل هېواد او استوګنځي سره مینه ولري او خیر غوښتونکی یې وي.

هېوادپالنه یوازې احساس او شعار نه دی، بلکې باید دغه احساس او شعار د هېواد د استقلال او مادي او معنوي پرمختګ لپاره په کار او عمل بدل شي. رښتینی مسلمان، زموږ د ګران پیغمبر حضرت محمدﷺ په څېر له خپل هېواد سره مینه لري او د هغه د خیر او سلامتۍ لپاره د یو دیني رسالت او مسؤولیت په توګه هڅه او هاند کوي.



افغانستان زموږ هېواد دی او د هغه د لوړتیا او پرمختګ لپاره کار او جهاد او له هغه څخه ملاتړ د هر مسلمان افغان شرعي دنده ده.




زده کوونکي دې په دې اړه چې (ښه مسلمان باید هېوادپال واوسي) پخپلو کې خبرې وکړي.




١- ولې ټوله ځمکه انسان ته د هېواد په شان وي؟

٢- ولې مسلمان له اسلامي هېوادونو سره مینه لري؟

٣- د لوست حدیثونه د مسلمان لپاره څه پیغام لري؟

٤- د هېواد پالنې رښتینې معنا څه ده؟




زده کوونکي دې د لوست احادیث په یاد کړي، د یوه هېوادپال مسلمان د خویونو په اړه دې یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.

# بیت المال او د هغه ساتنه



پانګه او شتمني د الله ﷻ له نعمتونو څخه یو نعمت دی او د انسان په فردي او ټولنیز ژوند کې مهمه ونډه لري. یو ډول مال او پانګه په یو شمېر افرادو پورې اړه لري او د هغوی شخصي ملکیت بلل کېږي. بل ډول شتمني او پانګه په ټول ملت پورې اړه لري او د یو ټاکلي شخص ملکیت نه وي، خو ګټه یې د ټولنې ټولو غړو ته رسېږي.

دغه لوست د عامه ګټو او د هغو د ساتلو د ارزښت بیانولو ته ځانګړی شوی دی.

بیت المال یوه اسلامي اصطلاح ده چې د عمومي اموالو او پانګو د ساتلو ځای ته وایي. د اسلام په لومړیو او د راشدو خلیفه ګانو په پېړکې د عمومي مالونو او پانګو یا دولتي اموالو د ساتلو ځای ته (بیت المال المسلمین) ویل کېدل. وروسته دې اصطلاح په لنډ ډول د بیت المال په نامه شهرت وموند.

عمومي ملکیتونه یا بیت المال د ټولو خلکو مال دی او د فرد یا ټاکلو افرادو شخصي ملکیت نه ګڼل کېږي. په بل عبارت په بیت المال کې د هېواد ټول غړي حق او ونډه لري. بودجه او د دولت د پیسو خزانې، مالونه او دولتي ځمکې، غرونه، ځنګلونه، پارکونه او د تفریح او لوبو ځایونه، معدنونه او طبیعي پانګې، لارې او سړکونه، دولتي ودانۍ، دولتي ترانسپورتي وسایل، لکه موټر، الوتکې او... ټول د بیت المال مالونه دي.

د اسلام د مبین دین له نظره بیت المال د امانت حیثیت لري او لازم دی چې چارواکي بیت المال په بشپړ امانت وساتي او پرې نږدې له هغو څخه ناوړه ګټه واخیستل شي.

د بیت المال له مالونو څخه ګټه اخیستل باید د هغو اصولو او ظوابطو په چوکاټ کې ترسره شي چې د اسلامي شریعت او د هېواد د نافذو قوانینو له خوا ټاکل شوي دي.

اسـلام پر ټولګټو پانګـو او مالونو (بیت المال) باندې تېری کول حـرام ګڼلی او له هغو څخه ناروا ګټـه اخیسـتل یې په هره بڼه چې وي، منع کـړي دي. د بېلګې په توګه څوک حق نه لري له دولتي امکاناتـو او موټرو شـخصي ګټه واخلي او دولتي ونـې او ځنګلونه چې د ټول ملت مال دی، پرې کړي او یا یې وپلوري او یا کانونه او طبیعي زېرمې په خپل سر راوباسي او مصرف یې کړي.
همدا راز خزانه او دولتي بودجه باید په داسـې ځایونوکې مصرف شـي چې ګټه یې ټولو خلکو ته ورسـېږي. له عمومي پیسـو او بودجې څخه غیر شـرعي ګټه اخیستل یو ډول خیانت او اختلاس دی چې حرام او ناروا ګڼل کېږي.
باید پوه شـو چې د هېواد اقتصادي قوت تر ډېره له عمومي پانګو او بیت المال څخه په سـمو ګټو اخیستلو پورې تړاو لري.
د ښـوونځیو، دولتي دفترونو، روغتونونو، لویو لارو، د اوبو او برېښـنا بندونو جوړول، د معارف د کتابونو چاپول، د دولتي مامورینو او اجیرانو معاشـونه، له اړوکسـانو سـره مرسته او... د هېواد له بیت المال څخه پوره کېږي.
موږ دنده لرو د بیت المال شتمني د شخصي مالونو په څېر وساتو او پرې نږدو چې ملي پانګې او شتمني بې ځایه لاړې شي او یا په ناروا توګه ترې ګټه واخیستل شي.




زده کوونکي دې د ټولګټو شتمنیو یو لست جوړ کړي.




۱- بیت المال څه ته وایي؟
۲- د بیت المال مالونه د چا ملکیت دی؟
۳- آیا له بیت المال څخه شخصي ګټه اخیستل روا دي؟
٤- اختلاس ولې ناوړه عمل ګڼل کېږي؟




زده کوونکي دې د بیت المال د ساتنې په اړه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.

## د ملتونو په پرمختګ کې د پوهنې ونډه



پوهنه له ایمان وروسته د ولسونو د پرمختګ بنسټ جوړوي. هېڅ ولس د علم له ځېړنې او نوښت پرته د پوهنې په مختلفو ډګرونو کې پرمختګ نشي کولای.
ددغه لوست متن د شعر په فصیحه ژبه د ولسونو د پرمختګ علت او سبب بیانوي.

### علم او پوهه

بې له علمه به څه غواړې په دنیا څوک
که عاقل وي که هوښیار وي که دانا څوک

تر دې شه متاع په دې دکان کې نشته
سود به وکا که کوي دغه سودا څوک

درست جهان قربان د علم تر ګوهر شه
دغه وایم که مې ویوښتي رښتیا څوک

علم سل خرواره ثقل په هوا کا
دروای شي یوه بڼه په هوا څوک؟

مجهولات به د عالم ورته معلوم شي
که دعلم له مضمونه شي جویا څوک

تر قیامته خرابي پرې اثر نه کا
که د علم پر بنا کېږدي بنا څوک

په دنیا دی هغه قصر بې قصوره
چې د علم پر قرار یې کړي بریا څوک

چې د علم د طبیب دارو ونه خوري
له مرض د جهل نه مومي شفا څوک

په جهان کې به غالب پر هر دښمن شي
که د علم توره وتړي تر ملا څوک

که بلا ده په جهان کې بې علمي ده
خدای دې نه کا مبتلا په دا بلا څوک

په حکمت سـره د خپل ملت غمخور شــه	بــارې نــه لــري د بــل ملــت پــروا څــوك
چـې د فکــر باریکــي نــه لــري وروره	څــه پــه کار ده کــه لــري باریکه مــلا څوك
هــر گــز نــه لــري زوال دولــت د علــم	دا دولــت له چا نه، نشــي وړای په غلا څوك
کــه د خپــل ملــت پخپلــه غمخور نشــې	هــر گــز نــه کا په پــردي مــړي ژړا څـــوك

هــر ملــت چـې وي بــې علمــه نابینــا وي
بــاري مــه شــه پــه جهــان کــې نابینــا څــوك ...

(عبدالعلي مستغني)

**لنډیز**

عبدالعلي مســتغني زموږ د هېواد مشــهور شــاعر دی. مســتغني په ۱۲۹۳ هــ ق کال د کابل په بالاحصار کې زیږیدلی دی. د هغه مهال دوديز علوم یې لوســتي او په نجوم او هندســه کې یې زیاته مطالعه لرله. مســتغني د ســراج الاخبار د ادبي برخې ليکوال او د حبيبيې د لېســې ښــوونکی و. مســتغني په ۱۳۵۲ هـ ق کال [۱۳۱۲ لمريز کال] کې وفات شوی دی. مستغني په پښتو او دري ژبو شعرونه ويلي. دا کار په حقيقت کې له ټولو هېوادوالو سره د هغه مينه په ډاگه کوي.

اروابناد مستغني په دغه شعر کې علم ستايلی او د اوسنۍ نړۍ ټول پرمختگونه او برياوې يې د علم له برکته گڼلي دي. هغه علم او د علم زور او قوت ســتايي او بې علمي او ناداني غندي. د هغه دا شــعر موږ ته ســتر پيغام دی. ښــايي عمل پرې وکړو او د علم د ترلاسه کولو لپاره شپه او ورځ زيار وکاږو.




زده کوونکي دې پورته شعر د هر بیت متن په جلاجلا توګه شرحه کړي.




۱. آیا د پټو سترګو تقلید د یوه ملت د پرمختګ سبب کېدای شي؟

۲. د لوېدیځ هېوادونو د پرمختګ او قوت سبب څه دی؟




زده کوونکي دې د پوهې او ودانۍ تر منځ د اړیکو په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.



# د کندهار امنيتي کمربند او د زرغونې انا دريځ

د کندهار دېوال(کمربند) د هېواد د تاريخ يو ځانګړی بحث دی، چې د احمد شاه بابا له زمانې سره تړاو لري. احمدشاه بابا د افغانستان له سترو واکمنانو څخه يو واکمن دی چې د خپلې پاچهـــۍ په لومړيو کلونو کې يې غوښتـــل د کنـــدهار له ښار څخه ګردچـــاپېره دېوال تاو کړي.

زرغونه انا هغه پښتنه مېرمن وه چې د ښې ميرانې او غوره تدبير له مخې يې د دغه دېوال د جوړولو مخه ونيوله. په لانـــدې لـــوست کې به د پورتنۍ موضوع په اړه معلومات ترلاسه کړو.

د احمدشاه بابا مور زرغونه نومېدله. نومورې په زرغونې انا شهرت درلود او د افغانستان د پوهو او هوښيارو ښځو له ډلې څخه وه.

احمد شـــاه بابا د پاچهۍ په اتم کال (١١٦٨ لمريز) په کندهار کې د مشـــرانو يوه جرګه جوړه کړه، چې د کندهار د نوي ښار د جـــوړولو په اړه خـــبرې وکړي. د نوي ښار د جوړولو لپاره ځای وټاکي او د ښار د دېوالونو په اړه پرېکړه وکړي.

يوه ورځ زرغونه انا جرګې ته ورغله. احمدشاه بابا له خپلې مور و پوښتل: "مورې، جرګې ته څنګه راغلـــې يـــې؟" زرغونې انا ځواب ورکړ: "اورېدلي مې دي د يو ښـــار د جوړولو نيت لرې چې اووه دېوالونـــه ولـــري. زه راغلې يمه، پوه شـــمه چې آيا دغه خبره رښـــتيا ده او جرګې دغه هوډ نيولی؟"

احمدشاه بابا ځواب ورکړ: "هوکې مورې، جرګې پرېکړه کړې د نادرآباد پرځای نوی ښار جوړ کړو چې ګردچاپېره اووه دېوالونه ولري. هغه به د افغانستان پلازمېنه وي او هلته به ژوند کوو."

زرغونې انا خپل زوی او د جرګې غړيوته وويل: "هېواد، ښـــار او خلك د غيرتي خلکو په همت

ساتل کېږي، نه په لوړو دیوالونو. که غیرتي سړي شتون ولري، خلک که څه هم په کېږدیو کې ژوند وکړي، کولای شي خپل هېواد وساتي او که غیرت نه وي په اوو دېوالو څه، چې په سلو دېوالونو سره هم نشي کولای خپل هېواد وساتي. بې ځایه ځوانان مه ستړي کوئ، داسې ښار جوړ کړئ چې یوازې یو دېوال ولري او خلک پکې ژوند وکړي. د هېواد ساتنه د مېړنیو همت ته پرېږدئ."
د زرغونې انا دا خبرې احمد شاه بابا او د جرګې غړو ومنلې او پر پـخوانۍ پرېکړه یې بیا کتنه وکړه. احمدشـاه بابا د کندهار نوی ښـار جوړ او د خپلې مور د سپارښـتنې پر بنسټ یې یوازې یو امنیتي دېوال جوړ کړ.
له دغې تاریخي کیســې څخه ښـکاري افغانانو د تاریخ په اوږدو کې داســې مېړني مشران درلودل چې تر قیامته به د هغو په کړنو زموږ ولسونه ویاړي. له خپل مسلمان ولس سره د هغوی بې کچې مینې، هغوی د مشـرتابه تر ټولو لوړ پوړ ته رسـولي وو، عملاً یې خلکو ته ښـوولې وه چې د قام د مشـر پـه توګه هغوی ټول هېواد ته د خپل کور او د هېـواد ټولو وګړو ته د خپلو وروڼو او خویندو په سترګه ګوري.
هغوی د نېکمرغۍ لپاره داسې فکر کوي لکه پلار یا مور چې د خپلو اولادونو په اړه فکر کوي او پـه دغه ډګر کې د نارینــه وو ترڅنګ د نامتو اتلو افغان مېرمنو تاریخي کړنې هم د تاریخ په پاڼو کې له ورایه ځلېږي.
حقیقــت دادی چــې اتلولي او مېړانه په نارینه یا ښــځې پورې تړلې نه ده. پــه دغه برخه کې باید د خپلو تاریخي مېندو او پلرونو تاریخ په غور ولولو او د ژوند په چارو کې د هغوی پر پل، پل کېږدو. هغه چا، چې د ځمکې پر لویه برخه حکومت کاوه، تر واک لاندې سـیمو کې یې سـوله، امنیت او ورورولئ ټینګه وه. اصلي لامل یې دا و چې له خپل مســلمان ولس سـره یې رښتینې مینه لرله. په همدغه رښتینې مینه یې د خپل هېواد ټول وګړي یو شان پالل، د هغوی د ګټو د ساتلو او زیانونو د مخنیوي لپاره یې شپه او ورځ هڅې کولې. د هغوی د بري راز په همدغو چارو کې نغښتی و.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشــل شــي. لومړۍ ډله دې د احمد شاه بابا او دویمه ډله دې د هغه د مــور زرغونــې انا په اړه په خپلو کې خبرې وکړي او دواړه ډلــې دې خپل معلومات ټولګیوالو ته بیان کړي.




۱- احمد شاه بابا په کوم نیت د کندهار تر ښار د دېوال چاپېرولو هوډ کړی و؟

۲- زرغونې انا د څه لپاره ددغه دېوال جوړولو مخالفت وکړ؟

۳- ملي مشران ښایي د خلکو پر وړاندې څنګه چلن ولري؟




زده کوونکي دې د ملي مشــرتابه د اخلاقو او ورځني چلن په اړه معلومات راټول او ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې له ټولګیوالو سره شریک کړي.

# د شهيدانو ياد



شهيد چاته ويل کېږي او له کوم مقام څخه برخمن وي؟

د شهيدانو په اړه زموږ دنده څه ده؟

د شهيدانو ياد او د هغوی د کړنو او سربښندنو ياد ساتل، د نن او سبا نسل ته څه ګټه لري؟

د غه لوست د شهيدانو او د هغوی د مقام په اړه دی. په دغه لوست کې به د پورتنيو پوښتنو ځوابونه ومومو.

شهيد هغه چاته ويل کېږي چې د الله ﷻ د رضا د لاسته راوړلو لپاره او د اسلام د سپېڅلي دين او د هغه د حکمونو او ارزښتونو د ساتلو په لاره کې يې ژوند له لاسه ورکړی وي.

د اسـلام حکمونه او ارزښـتونه ټول د بشريت په خير او ګټه او د انسانانو بريالیتوب او خلاصون په هغو کې نغښـتی دی، ځکه ويلای شـو چې شهيد د لوړو انساني موخو او ارمانونو او بشري ټولنې او خلکو ته د چوپړ لپاره سـرونه بښـندلي او ځانونه يې قربان کړي دي. شهيد هغه ډيوه ده، چې په خپله سوځي، خو ټولنه او نړۍ رڼا کوي.

د اسلام له نظره شهيد ډېر لوړ مقام لري. په قرآني آيتونو او نبوي حديثونو کې په وار وار د شهيد د مقام او د الله ﷻ په دربار کې د هغه د لوی ثواب يادونه شوې ده.

د قرآني آيتونو او نبوي حديثونو پر بنسـټ، شـهيدان په حقيقت کې ژونـدي دي او نه ښـايي هغــوی مړه وبلل شي. الله تعالی ﷻ د شهيدانو په اړه فرمايي:

﴿وَلاَ تَقُولُواْ لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبيلِ اللّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاء وَلَكِن لاَّ تَشْعُرُونَ﴾ – بقره:۱۵۴}

**ژباړه**: يعني تاسو هغوی ته چې د الله ﷻ په لاره کې وژل شوي، مړه مه وايئ، ځکه هغوی ژوندي دي او تاسو نه پوهېږئ.

ګران افغانستان د شهيدانو هېواد او زموږ ملت شهيد پالونکی ملت دی. افغان ولس د دين، ناموس، خاورې، خپلواکۍ او آزادۍ د ساتلو لپاره هر مهال قربانۍ ورکړې او د دغه سپېڅلي ارمان د ترلاسه کولو لپاره يې په زرګونو شهيدان ورکړي دي.

کله که زموږ هېواد د پرديو تر اشغال او يرغل لاندې راغلی او زموږ دين، ناموس، خپلواکي او آزادي له ګواښ سره مخامخ شوې، د افغانستان غيرتي ولس د جهاد او مبارزې مورچل ته دانګلي او په دغه لاره کې يې خپل مال او سرونه قربان کړي دي. د بېلګې په توګه د افغان - انګليس په دريو جګړو کې چې پر افغانستان د انګريزانو له خوا يرغل شوی او انګلستان زموږ د هېواد د اشغال هوډ کړی و، زموږ غيرتي ولس په مېړانه د بې شمېرو قربانيو او ډېرو شهيدانو په ورکولو غليم ته ماتې ورکړې او د هېواد استقلال يې لاسته راوړی دی.

همدا راز د ۱۳۵۷ لمريز کال د غويي د اوومې نېټې له خونړۍ کودتاه وروسته زموږ د مسلمانو خلکو دين او سپېڅلي ارزښتونه تر ګواښ لاندې راغلل. د وخت کمونستي حکومت د الحاد (بې دينۍ) او مارکسېزم د خپرولو او زموږ د خلکو، په تېره بيا د علماوو، پوهانو او د هېواد د فکر خاوندانو پر وژنو پيل وکړ او پر افغانستان يې د سوسيالستي شوروي اتحاد د يرغل لاره هواره کړه. د افغانستان مسلمان ملت د کمونستي الحاد او د شوروي د سره پوځ د تيري پرضد چې غوښتل يې زموږ هېواد اشغال کړي، د جهاد اعلان وکړ. په دغه سپېڅلي جهاد کې چې تر يوې لسيزې ډېر اوږد شو، تر دوو ميليونو زيات هېوادوال د نارينه وو، ښځو، ماشومانو، ځوانانو او سپين ږيرو په ګډون شهيدان شول. کابو د افغانستان لوېشت لوېشت خاوره د سپېڅلي جهاد د شهيدانو په وينو سره شوه.

زموږ د ملت د تاريخ جوړوونکي جهاد د شهيدانو په منځ کې د افغانستان ډېر ښه خلک چې پکې علماء، پوهان، استادان، روڼ اندی، سياستوال، مشران، سپين ږيري، سوداګر، محصلين،

زده کوونکـــي او ځوانان وو، یا له یرغلګر دښـــمن ســـره د جهاد په تاوده مورچـــل کې او یا هم په زندانونـــو او بېدیـــاوو کې د یرغلګرو او د هغوی د بړېځو له خوا په ډېر مظلومیت ســـره شـــهیدان شوي دي.

د مجاهدینو د سرښندنو، غیرت او زموږ د ګرانو شهیدانو د قربانیو په پایله کې، افغانستان د شوروي اتحاد له منګولو، اشغال او استعمار څخه خلاص او یوځل بیا د استقلال او آزادۍ خاوند شو.

د افغانســـتان ملت تل د خپل دین او خپلواکۍ د ســـاتلو لپاره سرښندنو او شهادت ته چمتو دی. هر کلـــه چې د افغانســـتان د خلکو پر دین، ناموس او خاوره یرغل وشـــي، د جهاد جنډه پورته کوي.

باید ووایو چې د افغانســـتان خپلواکي او آزادي د تاریخ په اوږدو کې د تل لپاره د رښـــتینو او مؤمنو مجاهدینـــو د زړورتیا او شـــهادت زېږنـــده ده. هغه څه چې نن یې لرو، د شـــهیدانو د وینو له برکته دي. که زموږ ګران شهیدان نن زموږ په منځ کې نشته، خو د هغوی د سرښندنو او اتلولیو یادول او خاطرې به د هېواد د نن او سبا د نسلونو په زړونو او ذهنونو کې تلپاتې وي.

ژوندي ولســـونه کله هم خپل شـــهیدان او اتلان نه هېروي. د شـــهیدانو یاد او د خدمتونو او قربانیو درناوی د افغانســـتان د ملت د هوښـــیارۍ او د کار پر ارزښـــت د پوهېدلو نښه ده. له دې امله موږ د شهیدانو خاطرې ژوندۍ ساتو، ترڅو مو هېواد ژوندی پاتې شي.

د شـــهیدانو د ارمانونو او موخو ســـاتنه او د هغوی پر لارې تلل، که له یوې خوا د هغوی د مقام او د لوړ موقعیت درناوی دی، له بلې خوا د رښتینې هېوادپالنې نښه ده. موږ یو ژوندی او یو موټی ملت یو، ځکه چې خپل شهیدان موهېرکړي نه دي.




زده کوونکي دې په پنځه کسیزو ډلو ووېشل شي او په خپلو کې دې د شهیدانو د مقام او د هغوی د کارنامو په اړه خبرې وکړي. د خبرو په پای کې دې د هرې ډلې په استازیتوب یوتن د ټولګي مخې ته راشي او د مباحثې لنډیز دې خپلو ټولګیوالوته بیان کړي.




۱- د شهید کلمه چاته کارول کېږي؟

۲- د اسلام له نظره شهید کوم مقام او موقعیت لري؟

۳- زموږ د هېواد خپلواکي او آزادي د کومو کسانو د سرښندنو په پایله کې لاسته راغلې ده؟

٤- زموږ د هېواد نني او سباني نسلونه د شهیدانو د آرمانونو پر وړاندې څه دنده لري؟




زده کوونکي دې د شــهید او په ټولنه کې د هغه د مقام په اړه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښــو لږه نه وي.

# وطن وايي

هېواد هغه ځای دی چې انسان پکې زېږېدلی او خـــاپوړې يې پکې کړې وي. له دې امله مينه او محبـــت ورسره لري.

د پرديسی او مسافرۍ پر مهال رنځېږي او په آبادۍ او سمسورتيا يې خوشحالېږي او خـــوند ترې اخـــلي. هېـــواد يا وطن، ډېرې مور پـــه څېر په خپله مهربانه غېږ کې د خپلـــو بچيانو او وګړو لپاره اسانتياوې چمتوکوي. له دې امله هېواد ته د مور خطاب کـــوي او هېواد هر چا ته د مور حيثيت لري. د هغه ساتنه او پالنه د هر هېوادوال ملي، انساني او اسلامي دنده ده. په دې لوست کې به زده کوونکي د هېواد د ارزښت په اړه معلومات ترلاسه کړي.

واوره ای پښـــتونه، زه ميـــراث ستا د نيکـويمـــه
ستا ښکلي زانګـــو يم هديـــره ستا د پلـــرويمـه
خاورې مې مه بوله په ښـــه سترګه را ته ګـــوره ته
خــــاورې کـــه يـــم ستا د نيکـــونو دسـرو يمه
ښه ښايســـته لعلونه سره ياقوت مې په لمن کې دي
ښکلـــــې شـــنه باغچه له ګلو ډکه د ليـــدو يـــمه
ښـــې ســـپينې خوږې يخې اوبه مې د شودو په ځای
تاسې ته درکړې مې مـــــور د ټولو پښـــــتنو يـــمه
خـــاوره او هوا مـــــې له غـــيرت او ننګـــه ډکه ده
وايي ننګ غيرت چې زه ورمه ستاسې د غرو يمه
ښـــلې دي ســـرې وينې د اوبو په ځـــای چمن زما
زه ابياري شـــوې تل د تـــورو په اوبـــو يمـــه
ته د ســـپينو تـــورو په رڼاکې روزل شـــوی يـــې
برق د آســـمان وايي بريښـــنا ستاسې د چـــړو يمه

هیر د پښتنو خوی او خصلت چې ګوره نه کړې ته
زه ساتلې تا په پښتنوالــه او پښتو یــمه
مه ټیټوه هېڅکله خپل سر د بل په مــــخ کې ته
تــه که وې ســـرلوړی زه سرلوړی پــه ملکو یمه
کلک عــزم له سره تېرېدل په خپل ناموس باندې
ښیمـــه پښتون ته د غیرت او ننګ زانګو یمه
څوک مې که پوره حقیقت غواړي په سندروکې
زه ((الفت)) ستایلې په خوږو خوږو نغـــمو یمه

**لنډیز**

شاعر په پورتني شعر کې په ښکلو الفاظو او جملو کې د هېواد ارزښت بیا نوي. هېواد یوازې یو موټې خاوره نه، بلکې د پلرونو او نیکونو درونـد میراث دی. د هغه پــه زړه او لمن کې لاڵونه، کانونه، ښکلې چینې، یخې اوبه، ښکلې دښتې، شنه باغونه شته. تر ټولو مهم ټکی پکې له هېواد سره مینه او محبت دی. شاعر هغه ته اشاره کوي چې د هېواد پت او عزت په میړاني سره وساتل شي او د سرلوړۍ لپاره یې سربښندنې ته چمتو واوسي.
په شعر کې له پښتو او پښتنو څخه موخه هغو غورو خویونو او اخلاقو ته اشاره ده چې لـوړ همت، هېوادپالنـــه، زړورتیا، غیرت، میلمه پالنه صبر او استقامت پکې نغښتي وي. افغانان له ستونزو سره روږدي دي او د زور او زر لپاره چا ته سر نه ټیټوي. کله چې د اسلام په سپېڅلي دین مشرف شول، دا خویونه نور هم پکې پیاوړي شول.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هېواد د شتمنیو او دویمه ډله دې د هېواد د ارزښت په اړه په خپل منځ کې مباحثه وکړي او پایله دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.




۱ - ستاسو په اند د هېواد خدمت څنګه سرته رسېدای شي؟
۲ – هېواد یې له اوسېدونکو څخه څه تمه لري؟ په خپله ژبه یې ووایئ.
۳ – د هېواد په ساتنه کې د خپلو نیکونو کومې کارنامې درته په یاد دي؟




زده کوونکــي دې د ګل پاچـا ((الفت)) په اړه مقاله چمتو او پــه بله ورځ دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# د هیواد اتل، غازي محمد جان خان وردګ



زموږ مېړنی خاوره د نومیالیو مشرانو، مجاهدینو، پوهانو، لیکوالو او شاعرانو زانګو ده. بې شمېره مشـران، مجاهدیـن او اتلان یـې په خپلې غېږ کې روزلي دي. هر یوه پـر خپل مهال خپلو خلکو او خـاورې ته نــه هېرېدونکې خدمتونه کړي او خپل نومونه یې تلپاتــې کړي دي. د هغوی پېژندل زموږ د هر یوه افغان دنده ده. موږ ته ښـایي د هغوی کارنامې یادې وسـاتو او ویاړ پرې وکړو. غازي محمدجان خان وردګ د نوموړو ملي اتلانو له ډلې څخه یو ملي اتل دی. نوموړي له غلیم څخه د هیواد په آزادولو کې سـتر رول لوبولی دی. له همدې امله یې نوم زموږ د هیواد د تاریخ په زرینو پاڼو کې لیکل شوی دی.

په دغه لوست کې د غازي محمدجان خان وردګ لنډه پېژندنه کوو.

محمدجان خان وردګ ولې د ملي غازیانو او اتلانو په ډله کې ګڼل کېږي؟

محمــد جان خان وردګ د غازي سـیدال خــان زوی دی او د وردګو ولایت د جغتو ولســوالی په بیدمشــک کلي کې زېږېدلی دی. محمد جان خان وردګ د ځوانی پر مهال د امیر شــېرعلي خان په لښکرو کې شامل شو. په پوځي خدمت، نظامي دسپلین، توپ استعمالولو او نښې ویشتلو کې د وړتیا او مهارت له امله د جنرالی رتبې ته ورسېد.

کلــه چې انګریزانو د خیبر له لارې پر افغانســتان یرغل وکړ، قومونــو او قبایلو له جمرود څخه تر ډکــې پورې د غازي محمد جان خان تر مشــرۍ لاندې ســخته جګړه وکــړه. هغه مهال چې امیر محمدیعقوب خان په ګندمک کې د فرنګیانو د برچې تر څوکې لاندې د ګندمک تړون لاسلیک کړ، محمد جان خان په ډکه کې په جګړه بوخت و، دربار ته راغی او له نوموړي لوظنامې سره یې خپل مخالفت څرګند کړ. د سیمې خلک یې جهاد ته راوبلل. د سیمې خلک پرې راغونډ شول، د وردګو لښکرې چې لا له وړاندې تیارې وې، د شلګر، کټواز او نورو سیمو له غازیانو سره یو ځای شــوې او پر انګریزانو د برید لپاره د وردګو د خوات او شــنیز په لارو کابل ته روان شــول. د خوات په لنګر نومې سیمه کې ورسره د غازي عبدالغفور اخندزاده تر مشرۍ لاندې یو شمېر مجاهدین

یوځای شول. کله چې د ۱۸۷۹ کال د می په میاشت کې انګریزان کابل ته ننوتل، محمد جان خان وردګ له یوه ټولي عسکرو سره د کوهستان له لارې راغی او په آسمایي غره کې یې پر انګریزانو برید وکړ. له دې وروسته جرنیل محمدجان خان په غازي محمد جان خان وردګ ونومول شو. د جنګیالیو د کمښت له امله بېرته وردګو ته ستون شو. هلته یې له ملي او مذهبي مشرانو سره سلا مشورې وکړې. د یوه لوی لښکر له تیارولو وروسته د ۱۲۵۷ لمریز کال د لیندۍ په میاشت کې کابل ته راغی او پر انګریزانو یې برید وکړ او سخته ماتې یې ورکړه. د ملي مبارزینو بریدونه هومره ژور او کاري وو چې بې شمېره انګریزان یې تر خاورو لاندې کړل. د کابل په قلعه قاضي کې د محمد جان خان په مشرۍ برید د دغو سترو نظامي خوځښتونو یوه لویه بېلګه ده چې وایي انګریزانو د تېښتې لاره ورکه کړې وه. د انګریزانو د ځواکونو مشر، رابرټس هر ځای له غازي محمد جان خان او وزیر محمد اکبر خان څخه سر ټکولی دی.

پر هېواد د انګریزي ښکېلاک د دویم یرغل پر مهال غازي محمد جان خان وردګ د خلکو او ولسونو په یوکولو وکړای شول، د وردګو، غزني او کابل په سیمو کې بهرنیو یرغلګرو ته غاښ ماتوونکې ماتې ورکړې.

له محمدجان خان وردګ سره د خپل ځان او خپلې کورنۍ غم نه و، بلکې د ټول ولس او خپل هېواد افغانستان غم ورسره و. هغه ته څرګنده وه چې د هېواد ننګ، ناموس، عزت، شرف او خپلواکي د ټولو افغانانو پر یووالي او یوموټي توب ساتل کېږي، له دې امله یې د ملي یووالي او د ولسونو د وحدت پر اړتیا ټینګار کاوه.

غازي محمد جان خان د ۱۲۱۳- ۱۲۵۸ لمریز کلونو تر منځ ژوند کړی او د افغانستان په سیاسي تاریخ کې یې پیاوړی رول لوبولی دی.

غازي محمدجان خان وردګ په همدې لار کې د شهادت لوړ مقام ته رسېدلی دی. اروا دې ښاده وي.




زده کوونکي دې د هېواد د خپلواکۍ د لارې د ملي مجاهدینو او اتلانو د سرښندنو په اړه په خپلو کې خبرې وکړي.




۱ - ستاسو په اند غازي محمد جان خان وردګ ولې د ګندمک له تړون سره مخالفت وکړ؟
۲ - انګریزانو څو وارې پر افغانستان برید کړی او غازي محمدجان خان د کومې جګړې اتل ګڼل کېږي؟




زده کوونکي دې د هېواد د خپلواکۍ په ساتلو کې د ولس د یووالي د اهمیت او اړتیا په اړه یوه مقاله ولیکي.

# د ازادۍ او خپلواکۍ اهمیت



خپلواکي او آزادي د یوه ملت په برخلیک کې څه ونډه لري؟
خپلواک ولسونه په نړۍ کې کوم دریځ لري؟
په دې لوست کې به د نورو معلوماتو تر څنګ د پورته پوښتنو ځواب لاسته راوړو.

آزادي او خپلواکي د الله ﷻ له سترو نعمتونو څخه ګڼل کېږي. خپلواکي دې ته وایي چې د یو هېواد اوسېدونکي خپل ټول سیاسي، اقتصادي او فرهنګي فعالیتونه د بهرنیانو له لاسوهنې پرته د خپل هېواد د ملي ګټو، د خمکې د بشپړتیا، ترقۍ او پرمختګ د سوکالۍ او نیکمرغۍ په پام کې نیولو سرته ورسوي.
د افغانستان آزادۍ خوښوونکي خلک د تاریخ په اوږدو کې د ظلم، استبداد، استعمار او تېري پر وړاندې جهاد او مقابله کړې ده او د هېواد له آزادۍ او خپلواکۍ څخه یې د سر او مال په بیه ساتنه کړې ده. څرګنده بېلګه یې د مقدوني سکندر، چنګېز، مغولو، انګرېزانو او په دې وروستیو کې زموږ پر هېواد د پخواني شوروي اتحاد د سره پوځ د یرغل پر وړاندې د افغانستان د خلکو مېړانه ده. افغانانو د اسلام د مبین دین د لارښوونو په رڼا او د ملي یووالي او اسلامي روحیې د ساتلو په برکت د پردیو تېري پر شا تمبولي او له خپلې خاورې څخه یې دفاع کړې ده.
د ولسونو نېکمرغي هغه مهال رامنځته کېدای شي چې هېوادونه یې سیاسي او اقتصادي آزادي ولري؛ یعنې په سیاسي عمل او اقتصادي فعالیتونو کې آزاد وي او د خپلواکۍ او آزادۍ تر سیوري

لاندې خلک خپله نېکمرغي، ترقي او پرمختګ ترلاسه کړي.
د آزادۍ او خپلواکۍ لمانځل د هېواد شهیدانو، اتلانو او سربښندونکو ته درناوی دی، چې د هېواد لپاره یې خپل ګران ځانونه قرباني کړي او راتلونکو نسلونو ته یې ستره ډالۍ، یعنې آزادي او خپلواکي په میراث پرې ایښې ده. موږ باید د هغو د لاسته راوړنو اوبریاوو ساتنه وکړو.




زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي. هره ډله دې د لاندې یوې موضوع په اړه خبرې وکړي او پایله دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.
ـ آزادي څه ته وایي؟
ـ آزادي د انسانانو او هېوادونو په ژوند انه کې څه ارزښت لري؟
ـ د هېواد له خپلواکۍ او آزادۍ څخه څرنګه ساتنه کېږي؟




۱. خپلواکې او آزادي د یوې ټولنې په اقتصادي پراختیا کې څه ونډه لري؟
۲. د سیاسي او اقتصادي خپلواکۍ ترمنځ څه اړیکه ده؟
۳. د خپلواکۍ په ساتنه کې د افغانستان د خلکو د مېړانې بېلګې بیان کړئ؟




زده کوونکي دې د آزادۍ د اهمیت او ارزښت په اړه یوه مقاله ولیکي.

# د عینو کاریز



مېرمــن عینــو یوه پیــاوړې او غیرتمنه مېرمن وه چې د احمد شــاه بابا په عصر کــې یې په کندهار کې ژوند کاوه. د دې ښــځې په کړو وړو کې اســلامي ارزښــتونه او افغاني غیرت ګډ شوی و. زده کوونکي به په دغه لوست کې د مېرمن عینو د مېړانې، شهامت، او له هېواد سره د هغې د مینې او محبت په اړه معلومات تــر لاسه کړي.

د کندهار ښــار ته نــږدې یو کاریز دی چې د عینو کاریز نومېږي. عینو یــوه ننګیالۍ افغانه مېرمن وه چې د احمد شــاه بابا په عصرکې یې ژوند کاوه. کوم وخت چې احمد شــاه بابا د هندوستان په یوه سفر تله، نو د دې مېرمنې خاوند هم له هغه سره په عسکرو کې هغه لوري ته لاړ. کله چې افغانان له هغه ســفر څخه بېرته بریالي او فاتح را وګرځېدل، نو د کندهار ښــار ته نږدې دېره شول چې شپه تېره کړي او ســبا د ورځې په رڼا کې په ښــکاره شان او شوکت ښار ته ننوزي. د مېرمن عینو خاوند په دغه شپه په پټه خــپل کور ته لاړ. د کــور دروازه یې وټکوله. مېرمــن عینو دروازې ته ورغله او ویې پوښــتل څوک یې؟ ده ورته ځان وروپېژاند. مېرمن عینو بیا ورڅخه پوښــتنه وکړه چې څنګه راغلې؟ احمدشاه بابا څه شــو؟ لښــکر مــو بــریالــی شــو؟

خاوند یې ورته وویل، که مو لښــکر بریالی شــوی نه وای، نو زه به هم تا ته ژوندی نه وای راغلی، لویه سوبه مو په نصیب شــوې ده... عینو بیا پوښتنه وکړه، نو ته ولې یوازې راغلې؟ نور لښکر څه شو؟ خاوند یې وویل، نور لښکر ښار ته نږدې د بابا په امر پروت دی، چې سبا د ورځې په رڼا کې ښــارته ننوزي. زه ســتا مینې ناقرار کړم او تر هغو د مخه راغلم، ژر دروازه راخلاصه کړه چې سره ووینــو. عینــو ورته وویل، تــه تر چا نازولی وې چې ملګري دې پرېښــودل او په پټه له ټولو څخه د

مخه شـوې، ماته راغلې؟ آیا سـتا نورو ملګرو ښځې نه درلودې؟ که یې په سینو کې زړونه نه وو؟ دا ټول وو، خو هغو نه غوښـته چې داسـې یو کار وکړي... که سبا نورې پښتنې مېرمنې خبرې شي ماته به څه وایي؟ دا ډېر لوی پېغور دی. تا ته ور نه خـلاصوم، ځه لاړ شه! هغه مهال چې د احمد شـاه بابا ټول سـرتیري کورونو ته راستانه شـول، ته هم راتلای شې. د عینو خاوند د خپلې ننګیالۍ مېرمنې له پیغوره و شرمېد، بېرته لاړ، خو خیمې ته نژدې ځوکیدارانو ونیوه او سبا ته یې د احمد شاه بابا مخې ته ورووست، ځوکیدار عرض وکړ چې دا سپاهي د شپې بې له اجازې کورته تللی و. احمدشاه بابا پوښتنه ځنې وکړه، عسکر چې څه لیدلي او اورېدلي وو، ټول یې ورته وویل.
احمدشاه بابا د هغه د مېرمنې پر مېړانه او افغاني احساس باندې شاباسی ووایه او د هغې په درناوي یې د دې عـسکرګـناه هـم وبښله، مـېرمن عینو ته یې کاریز وروباښه چې تر اوسه پـورې د ((عینو کاریز)) په نامه مشهور دی، دا کاریز د کندهار ښار لمرخاته ته پروت دی.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې د تاریخ په اوږدوکې د افغاني میرمنو او بله ډله دې د عینو د مېړانې او غیرت په اړه په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي.




۱- مېرمن عینو د افغانستان د کوم پاچا په عصر کې اوسېدله؟
۲- مېرمن عینو د خپل خاوند په وړاندې څرنګه دریځ غوره کړ؟
۳- احمد شاه بابا د عینو د هېواد پالنې د روحیې پر وړاندې څه غبرګون وښود؟




زده کوونکي دې د منابعو او د سیمې د مشرانو په مرسته له هیواد سره د مینې په اړه یوه مقاله ترتیب او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# فرهنګي میراثونه

(ملي موزیم، ملي ارشیف او ملي ګالري)



پـه دغه لوســت کې به د ملي موزیم، ملي ارشــیف او ملــي ګالرۍ په اړه معلومــات پیدا کړو. په نوموړو ځایونو کې تاریخي آثار، ارزښــتناک خطي اســناد او هنري آثار ســاتل کېږي او ننداریې ته وړاندې کېږي، چې زمــوږ د ټولنې د تېرو وختونو د سیاســي، اقتصــادي، فرهنګي، پوځي او ټولنیزو حالاتو بیانوونکــي دي. دغه راز دا تاریخي آثار د فرهنــګي میراثونو په نامه هم یاد شوي دي. له دې لوســت څخه به پوه شــو چې دا توکي چېرته ساتل کېږي او موږ د هېواد پر وړاندې څه مسؤولیت لرو؟

## ۱ـ ملي موزیم، دلرغونو آثارو زېرمه تون

د تاریخي او ارزښتناکو آثارو او توکو د ساتنې لپاره ډېر مهم ځای موزیمونه دي چې په ورته حال کې خلک د هغوی په لیدلو په مســتقیمه توګه له ارزښــتناکو فرهنګي میراثونو سره آشنا کېږي. په ۱۹مه پېړۍ کې د لرغــونو آثارو د ســاتنې او ننداریې لپاره په نړۍ کې مــوزیمــونه جوړ شول.

د کمیابو او ارزښتناکو شیانو له ساتنې سره د انسانانو ذاتي تمایل، علمي پرمختګونه، له ملي هــویت ســره مینه او د لرغوني ژوندانه په ښه پېژندلو کې د دغو آثارو د ارزښت په اړه د خبرتیا زیاتوالی هغه دلایل دي چې دولتونو او حکومتونو په دې برخه کې پاملرنه کړې. له فرهنګي مرکزونو څخه یو هم د افغانستان ملي موزیم دی. ملي موزیم په ۱۲۹۸لمریزکال کې جوړ شوی دی چې د هېواد د تاریخي آثارو د ساتلو مسؤولیت پر غاړه لري. دغه موزیم ته د کورنیو جګړو پر مهال ډېر زیانونه اوښتي او یو

شمېر توکي یې له هېواد څخه بهر ته وړل شوي وو. د افغانستان ملي موزیم د نړۍ له بډایو موزیمونو څخه شمېرل کېږي او ډېر ارزښتناک تاریخي آثار لري. اوس د دغو آثاروګڼ شمېر د دولت په پاملرنه او د دوستو هېوادونو او نړیوالې ټولنې په مرسته بېرته هېواد ته راوړل شول. دغه راز د هغه ودانۍ هم د نړۍ د موزیمونو له معیارونو سره سم بېرته رغاول شوې ده. ملي موزیم د کابل ښار د دارالامان په سیمه کې موقعیت لري او د افغانستان له فرهنګي او تاریخي ودانیو څخه شمېرل کېږي.

## ۲_ ملي ارشیف

د خطي او چاپي ارزښتناکو آثارو د ساتلو ځای د ملي آرشیف په نامه یادېږي. د اسنادو د ساتلو لپاره ارشیف د جوړېدو تاریخ تر لرغونې وخت پورې رسېږي. له هغه وخته، چې انسان د خپل ژوندانه اړوند مسایل ثبت کړل، د ساتنو په فکر کې یې ولوېد. مسلمانانو په مختلفو پړاوونو کې د اسنادو د ساتلو لپاره ځایونه درلودل چې د خزینې په نامه یادېدل. په اروپا کې په منځینو پېړیو کې د دولتي سندونو او مدارکو د ساتلو لپاره آرشیفونه رامنځته شول. په ۱۷مه پېړۍ کې په اروپا کې د مهمو دولتي سندونو تنظیم دود شو او د هرې ورځې په تېرېدو سره د ملي آرشیفونو شمېر زیات شو.
په افغانستان کې ملي ارزښتناک آثار لکه فرمانونه، علمي، قلمي او نقش شوي او میناتوري شوي علمي کتابونه او نور مهم سندونه په ملي آرشیف کې ساتل کېږي.
زموږ د هېواد ملي آرشیف په ۱۳۵۳لمریز کال کې جوړ شوی، د کابل ښار په سالنګ واټ کې موقعیت لری او د افغانستان د تاریخ او فرهنګ د څېړنې ښه منبع ګڼل کېږی.
په ملي آرشیف کې لاندې سندونه ساتل کېږي:

• اقتصادي او ټولنیز سندونه، لکه په ځمکو، سوداګرۍ او صنعت پورې اړوند سندونه،


ملي آرشیف

• فرهنگـي سـندونه، لکـه د علمي او فرهنگي مرکزونـو په جوړولو پورې اړوند سـندونه، خطي میناتوري شوي کتابونه،
• سیاسي سندونه، لکه فرمانونه او تړونونه،
• شخصي سندونه، لکه خاطرې او سفر نامې.

## ۳_ ملي گالري، د هنري آثارو زېرمه تون

گالري یوه فرانسـوي کلمه ده. په افغانسـتان کې هغه ځای ته ویل کېږي چې د نقاشـۍ او میناتورۍ ارزښتناک کلاسیک او معاصر آثار پکې ساتل کېږي.
د موزیم تابلوگانې او نور نقاشـي شـوې آثار د څېړونکو د څېړنې لپاره ډېر زیات ارزښت لري. په هر حال لرغوني آثار چې په ملي موزیم، ملي ارشیف او ملي گالرۍ کې ساتل کېږي، د ټولنې د سیاسي، اقتصادي او فرهنگي، پوځي او ټولنیزو حالاتو د درک لپاره د څېړونکو او تاریخپوهانو د مطالعې او څېړنې لپاره اصلي منبع بلل کېږي. ملي گالري د کابل ښار په آسمایی واټ کې موقعیت لري.



د ملي گالرۍ انځور




زده کوونکي دې په ډلو کې د دې مطالبو په هکله خبرې اترې وکړي او پایله دې د ډلې استازی نورو ټولګیوالو ته ووایي.

- هغه آثار چې په ملي موزیم کې ساتل کېږي، بیان کړئ.
- هغه سندونه چې په ملي ارشیف کې ساتل کېږي، بیان کړئ.
- هغه آثار چې په ملي ګالرۍ کې ساتل کېږي، بیان کړئ.




۱. ولې هېوادونه موزیم لري؟
۲. ملي آرشیف ولې او څه وخت زموږ په هېواد کې جوړ شو؟
۳. آیا ملي ګالرۍ ته د هنري آثارو موزیم ویلای شو؟




هغه پخواني آثار او سندونه، چې زموږ ملي هویت څرګندوي، د خپلو ملګرو او دوستانو په مرسته ولیکئ.

# د هېواد نوموركي خدمتگاران



كله چې د هېواد د خپلواكۍ په اړه خبرې اورئ، آيا دې ته مو پام كړى چې دغه خپلواكي په څومره بيه د چا د جهاد او سرښندنې له امله لاسته راغلې؟ كله چې د هېواد دننه سفركوئ، آيا په ذهن كې مو گرځېدلي چې د سړكونو جوړېدل د چا د خولو د تويېدو او نه ستړي كېدونكي كار پايله ده؟ كله چې د هېواد په كوم گوټ كې ښكلې ودانۍ وگورئ، كله مو د هغو كسانو په اړه فكر كړى چې په جوړولو كې يې شپه او ورځ زيار گاللى. كله چې له وېرې پرته په خپلو كورونو كې سوكاله ژوند كوئ، يا په ښوونځي كې زده كړه كوئ يا په ښاركې په آزاده توگه گرځئ راگرځئ، آيا فكر مو كړى چې دغه آرامي او امنيت چا ټينگ كړى؟ كله چې خواړه، مېوه يا سابه خورئ او خوندتري اخلئ، آيا دې ته مو پام كړى چې د هغو دكرلو، خړوبولو او د الله ﷻ د دغو نعمتونو د تيارولو زيار چاگاللى او خولې يې تويې كړي دي؟ كله چې د گران هېواد له ښارونو څخه په يوه پاك ښاركې گرځئ، آيا په ذهن كې مو گرځېدلي چې دغه پاكي او ښكلا د چا د كار محصول دى؟ كله چې د هېواد په يوه روغتون كې تاسې يا ستاسو له خپلوانو څخه د چا درملنه شوې او روغ شوى وي، آيا پام مو ورته كړى چې د ناروغانو د درملنې لپاره شپه او ورځ څوك زيار باسي او د شپې ويښ پاتې كېږي؟

كوم كارونه چې پورته ونومول شول، ټول د افغانستان د زرگونو مخلصو او هېوادپالو بچيانو د نه ستړې كېدونكو هڅو پايلې دي چې په زړه سوي او ځان تېرېدنې د هېواد او هېوادوالو په چوپړ كې دي او په ټول وس هڅه كوي، د هېوادوالو د آرامۍ او سوكالۍ لپاره لاره هواره كړي.

د هېواد امنيت، آرامي او پرمختگ د دغو نوموركو خدمتگارانو له سرښندنو پرته لاسته نه راځي.

لــه دې املــه پر ځای ده چې د هېواد د بچیانو د رښــتینو هڅو درناوی وکړو او د هغوی احســان او نیکۍ هېرې نه کړو.

هغه انســانان چې نورو ته خیر رســوي، د شــمعې په څېر دي، په خپله ســوځي، خو چاپېریال رڼا کوي. دا راز خلك د ستاینې او درناوي وړ دي.




زده کوونکي دې د هغو هېوادوالو د کارونو په اړه په خپلو کې بحث وکړي چې په خپلې سرښندنې د نورو د ژغورنې لامل شوي دي. هغه کلینر چې د سالنګ په لویه لاره کې یې ځان د موټر تر ټایر لاندې کړ او شــهید شــو، خو لســګونه نور هېوادوال یې له مرګ وژغورل، د دغو ځان تېرېدنو یوه بېلګه ده.




۱- د هېواد خپلواکي د کومو کسانو د ځان تېرېدنو محصول ده؟

۲- موږ د هېواد د نوموړکو خادمانو په اړه څه مسوولیت لرو؟




زده کوونکــي دې د هغو ارزښــتمنو خدمتونو بېلګې په خپلو کتابچو کــې ولیکي چې د هېواد په پرمختګ او پراختیا کې اغېز لري.

# عبدالرحمٰن پژواک



په دغه لوســـت کې به د هېواد د یوه سیاســـي، فرهنګي او ادبي شخصیت، عبدالرحمٰن پژواک په اړه معلومات تر لاســـه کـــړئ.

عبدالرحمٰن پژواک د افغانســـتان د تاریخ، فرهنګ، ادب او سیاســـت په ډګر کې یو ځلانده او لوی شـــخصیت دی چې په ۱۲۹۶ لمریز کال کې یې د همېشـــه بهار (ننګرهار) د ســـره رود (سرخرود) ولسوالۍ د باغبانیو د کلي په یوې روڼ اندې کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړولې دي. پژواک تر شلورم ټولګي پورې د خپل زېږېدلو په ځای کې زده کړه وکړه. ثانوي یا منځنۍ زده کړې یې د حبیبیې په لیسه کې په بریالیتوب سره پای ته ورسولې او وروسته یې د کابل پوهنتون د طب پوهنځي ته لاره پیداکړه. خرنګه چې د خپلې سلیقې او مینې پر خلاف په هغه پوهنځي کې شامل شوی و، دوه کاله وروسته یې خپلې زده کړې نیمګړې پرېښودې.

اروابناد عبدالرحمٰن پژواک خپل کاري ژوند د تاریخ په ټولنه کې د انګلیسي ژبې د ژباړونکي په توګه پیل کړ. د دغه کار ترڅنګ یې ادبي او هنري لیکنې هم کولې او وروسته یې د مطبوعاتو په مستقل ریاست کې کار وکړ. بیا د اصلاح ورځپاڼې د مسؤول مدیر په توګه وټاکل شو. وروسته د باختر آژانس مشر شو او د پښتو ټولنې ریاست افتخاري غړی شو. اروابناد پژواک په ۱۳۲۵ لمریز کال د ډیپلوماسۍ ډګر ته راغی او په ډېره لنډه موده کې یې استعداد او کاري توان ښکاره شو.

د ملګرو ملتونو په سازمان کې یې د افغانستان د دایمي استازي په توګه اوږده موده په مینه او مسوولیت

کار وکړ. د خپلې ژورې پوهې او تجربو پر بنسټ پر مهمو دندو وګومارل شو. له هغې جملې څخه د ملګرو ملتونو پر منشور د بيا کتنې د کميسون، د بشري حقوقو د کميسون، د ملګرو ملـــتونو د ټولنې عمـــومي غونډې مشري او د ناميبيا لپاره د ملګـــرو مـــلتونو د ځانګــړي استازي دندې يادولای شو.

په نړيواله کچه د ملګرو ملتونو د سازمانونو، لکه يونسکو، بشري حقونو او يونيسف کې د افغانستان د غړيتوب د ترلاسه کولو او په نړيوال ډګر کې د بشر د حقونو له اعلاميې سره د افغانستان د پيوستون په اړه د هغه هلې ځلې د ستاينې وړ دي.

د ملګرو ملتونو په سازمان کې د شته اسنادو پر بنسټ، پژواک د مـــلګرو ملتونو د برخليــک ټاکلو د حق ورکولو د طرحې نوښتګر هم بلل شوی چې((خپل - واک)) هم ورته ويل کېږي. په بله وينا د ((خپل - واک)) حق د پژواک تر هڅو وروسته ياده شوې اصل په توګه پېژندل کېده، خو د هغه د هڅو په پايله کې د ملګرو ملتونو په منشور کې د ملتونو د مسلم حق په توګه ثبت شو.

پـــژواک په ۱۳۵۲_۱۳۵٦ لمريز کلونو کې په هند کې د افغانســتان د سـفير په توګـه دنده لرله. له ۱۳۵۷ لمريز خــــونړۍ کودتاه وروستـــــه لـه رسمي دندو ګـوښه شــــو او د خــپلې هېوادنۍ مـــينې پر بنســـټ يې د ((انجمن حقوق بشر افغانستان)) تر نامه لاندې پټ سازمان جوړ کړ. پژواک په ۱۳٦۱ لمريز کې امريکا ته لاړ او په ۱۳۷۱ لمريز کال کې بېرته پېښور ته راغی.

له ارواښاد پژواک څخه لاندې چاپ شوي آثار پاتې دي:

کلمه داره روپی، آريانا، افسانه هاې مردم افغانستان کهن، پشتونستان، پيشوا، باغبان، ګلهای انديشه، بانـوی بلـخ، الماس ناشـکن، آواره ،ګلهای کوهي، افســانه های مردم، حديث خـون، ميهن من، احساسات و عواطف يک زن، حوض خاص او نور.

په خواشينۍ چې د هېواد نوموړی شاعر، کيسه ليکونکی او ډپلومات، عبدالرحمٰن پژواک د ۱۳۷٤ لمريز کال د جوزا په ۱۸مه د پنجشـنبې په ورځ (۱۹۹۰زېږديز کال) د هجرت په چاپېريال (پېښور) کې له نړۍ سترګې پټې کړې، جنازه يې افغانستان ته راوړل شوه او په خپلې پلرنۍ هديره کې (د سره رود، د باغبانيو په کلي کې) خاورو ته وسپارل شوه.




زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي. یوه ډله دې د استاد عبدالرحمٰن پژواک د زده کړو، دویمه ډله دې د هغه د فرهنګي او ادبي او دریمه ډله دې د هغه د سیاسي کارونو په اړه په خپلو کې خبرې وکړي او پایله دې په ټولګي کې بیان کړي.




۱- استاد عبدالرحمٰن پژواک د ملګروملتونو په سازمان کې کوم مهم کارونه وکړل؟
۲- د پژواک د ادبي او فرهنګي آثارو سرلیکونه ولیکئ.




زده کوونکي دې د عبدالرحمٰن پژواک د شخصیت په اړه یوه مقاله ولیکي او په ټولګي کې دې ولولي.

## د هېواد پرمختګ د هر افغان هیله ده



افغانان هېوادپال او سوله خوښوونکي خلک دي. خپل هېواد ورته ګران دی او د هغه د پرمختګ او پراختیا غوښتونکي دي. د هېواد پرمختګ د هر افغان د کوښښ، هڅې او زیار په واسطه په اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او فرهنګي ډګرونو کې پرمختګ رامنځته کولای شي. زده کوونکي به په دغه لوست کې له پورتنیو مطلبونو سره آشنا شي.

### الف - سیاسي برخه

د سیاسي برخې پراختیا د سیاسي نظام یوه مهمه برخه جوړوي چې د نظام د ټینګښت په برخه کې د ټولو په ګډه زیار پورې اړه لري. په دې برخه کې باید نظام داسې وده او پراختیا وکړي چې د هېواد هر افغان اوسېدونکی په خپل سیاسي نظام کې خپله ښېره وګوري. خپل ځان له هېواد څخه جلا و نه بولي او د هېواد په برخلیک کې ځان شریک وګڼي. د هېواد زیان خپل زیان او د هېواد پرمختګ خپل پرمختګ وګڼي. د هېواد ملي ګټو ته د خپلې لوړې هیلې په توګه فکر وکړي او د پراختیا په لاره کې يې خپل هېڅ ډول زیار ونه سپموي.

### ب- اقتصادي برخه

زموږ ګران هېواد، افغانستان د طبیعي منابعو له پلوه ډېر بډای دی او د سترې اقتصادي بډاینې درلودونکی دی چې د هېواد په اقتصادي پراختیا کې اساسي او ډېر مهم رول سرته رسوي. په دې برخه کې له طبیعي منابعو او اقتصادي زېرمو څخه دې کار اخیستل په داسې ډول سرته ورسېږي چې ملي ګټې، ملي اقتصاد او د عامو خلکو د ژوندانه د حالت بدلون د اقتصادي پروګرامونو په سر کې راشي. اقتصادي وده دې د افغاني ټولنې د ځانګړتیاوو له مخې په پام کې ونیول شي، چې

هر افغان يې له ګټو څخه برخمن شي، د هېواد د اقتصادي پراختيا په لاره کې ځان مسوول وبولي او احساس او باور تر لاسه کړي چې د هېواد اقتصادي پراختيا د هغو د ملتو په زور او همت سره امکان لري.

## ج - ټولنيزه او فرهنګي برخه

ټولنيزه او فرهنګي پراختيا د يوه هېواد په پراختيا کې مهم او بنسټيز رول لري. تر هغه چې د يوې ټولنې اوسېدونکي له ذهني او فکري پلوه بدلون و نه مومي او ځان د خپل ولس او هېواد ښښتن او خدمتګار و نه بولي، ټولنيز او فرهنګي پراختيا امکان نه لري. د ټولو قومونو اوسېدونکي، افغانستان خپل ستر کور بولي او په وده او پرمختګ کې يې ونډه اخلي. افغانستان د تاريخ په اوږدو کې د بېلا بېلو بشري تمدنونو او فرهنګونو د امتزاج او يو ځای کېدو مرکز پاتې شوی چې د دې سيمې خلکو د هغو په وده، پراختيا او خپرېدو کې ارزښتناک او مهم رول سرته رسولی دی. د افغانستان حکومت او دولت دنده لري، هغه فرهنګي ارزښتونه چې له پخوا څخه موږ ته په ميراث پاتې شوي، وساتي او د پراختيا په لاره کې يې هڅه وکړي.
د هېواد پرمختګ ته پاملرنه او په دغه ډګر کې کار کول، د يوه هېوادپال انسان له خويونو څخه دي.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د اقتصادي پراختيا په هکله او بله ډله دې د پراختيا د لاملونو په اړه خبرې وکړي او پايله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.




۱. سياسي پراختيا څه مفهوم لري؟
۲. اقتصادی پراختيا روښانه کړئ.
۳. فرهنګي او ټولنيزه پراختيا بيان کړئ.




زده کوونکي دې د افغانستان د پراختيا په هکله يوه مقاله ترتيب او په بله ورځ دې ټولګي کې وړاندې کړي.

# غازي میر مسجدي خان



زموږ خاوره تل د نړۍ د سترو زبرځواکونو او ګاونډیو تر بریدونو او یرغلونو لاندې راغلې ده. هره پلا یرغلګر د دغه خپلواکۍ غوښتونکي ولس له غابښ ماتوونکو ځوابونو سره مخ شوي.

د ملي اتلانو نومیالیتوب او زړورتیا چې د پردیو پوځونو پر وړاندې په مبارزه کې ننداري ته وړاندې شوې، د افغانستان د ټولو سوله خوښوونکو ولسونو د مینې او ملاتړ لامل ګرځېدلې ده. د حق د دې لارې د اتلانو نمونه خلکو په خپلو زړونو کې ژوندي ساتلي او د راتلونکو نسلونو د ویاړ او افتخار نښه بلل کېږي.

میرمسجدي خان د دغو ملي اتلانو له ډلې څخه یو اتل دی چې د هغه او نورو ملي اتلانو سرښندنې له انګریزانو څخه زموږ د هېواد د خپلواکۍ او استقلال د لاسته راوړلو لامل شوي دي.

د ملي اتلانو د ژوند لیک او اتلولیو یادول موږ ته څه را یادوي؟

میرمسجدي خان د کاپیسا ولایت د کوهستان په ولسوالۍ کې نړۍ ته سترګې غړولي او همدلته لوی شوی دی. د میرمسجدي خان کورنۍ د کوهستان له خواجه ګانو څخه شمېرل کېږي، چې د نسب لړۍ یې د اسلام لومړي خلیفه ته رسېږي.

زموږ پر خاوره د انګلیسانو د لومړي یرغل پر مهال مسجدي خان په کوهستان کې و. په ۱۲۵۶ هجري کال (۱۲۱۹ هـ ش، ۱۸۴۰ میلادي) میرمسجدي خان او سلطان محمدخان د هېواد د ملي مجاهدینو په مشرۍ امیر دوست محمدخان ته چې په دغه مهال یې په تاشقرغان کې استوګنه درلوده، لیک واستاوه. د کوهستان ملي مجاهدین چمتو دي د انګلیسانو پر وړاندې د خپل ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې وجنګېږي او جهاد ته دوام ورکړي. امیر ته یې کوهستان ته د راتګ بلنه ورکړه.

دا هغه مهال و چې امیردوست محمدخان د سرتېرو له کمښت څخه اندېښمن و. د دې بلنې له امله ډېر خوشال شو او د کابل په لور وخوځېد. میرمسجدي خان په ډېر اخلاص د هغه هرکلی وکړ او خپل کور ته یې بوتلو. کله چې د انګلیسانو استازی، مکناټن سیمې ته د امیر له بېرته راتګ او په کوهستان کې د هغه له استوګنې خبر شو، میرمسجدي خان ته یې یو لیک واستاوه او د امیر دوست محمد خان د سپارلو په وړاندې یې ورته د ډېرو انعامونو او مکافاتو وړاندیز وکړ او ورته یې ولیکل چې که هغه تسلیم نه کړي، نو کلا به یې ورته په توپونو والوزوي او دی به له زیان سره مخامخ کړي.

میرمسجدي خان د انګلیسانو دغه وړاندیز ونه مانه او نه یې له ګوانښ څخه وډارېده، بلکې تر پخوا یې زیات خپلو مبارزو ته دوام ورکړ. انګلیسـانو یو ځل بیا هغه او د سـیمې نورو مشرانو ته لیکونه واسـتول او د جګړې د نه کولو غوښـتنه یې وکړه. انګلیسان دا پلا هم د مسجدي خان له جګړې او مقاومت سره مخامخ شول.
میرمسجدي خان د عمر تر پایه پورې د انګلیسانو پر وړاندې خپل جهاد ته دوام ورکړ او د هغوی هېڅ راز انعامونو او مکافاتو ته تسلیم نشو.
د انګلیسـانو او ملي مبارزینو لومړۍ جګړه د پروان ولایت په تتم دره کې د علیخان کلا شـاوخوا ونښـته. انګلیسـان وایي، په دې جګړه کې د هغوی توپونو ته ډېر زیان ورسېد او د ادوارډ سانول په نامه یو کپتان یې هم په دې جګړه کې ووژل شـو. وروسـته د ۱۸۴۰ کال د اکتوبر په ۱۲ چاریکارو ته څېرمه د میرمسـجدي کلا شـاوخوا د انګلیسانو او ملي مبارزینو ترمنځ یوه بله جګړه پیل شوه.
میرمسجدي د نورو ملي مبارزینو په ملګرتیا پر انګلیسانو یرغل وکړ او سخته ماته یې ورکړه. په دې جګړه کې سـپه سـالار کاټن او رابرت ووژل شـول او ډېر پوځي تجهیزات د ملي مبارزینو لاسونو ته ورغلل.
میرمسـجدي خـان پیاوړی جنګیالی و. هغه پر هېواد او خپلواکۍ میـن و. هېڅ راز تمې او ډار له انګلیسانو سره د هغه د دښمنۍ مخه ونه نیولای شوه.
د دې زړور شـخص مجاهدتونـه او د پېرنګیانـو په وړاندې د کوهسـتان، کوهدامـن او نجراب د اوسـېدونکو په پاڅون او پاچاهی ته د امیردوسـت محمد خان په بېرته ورستنولو کې د هغه زیار او هڅه له هېواد سره د هغه مینه او علاقه څرګندوي. همغسې چې د هغه او د هغه د ملګرو زړورتیا ملي حماسه جوړه کړه، پر ځای به وي چې هغه د نومیالیو ملي اتلانو په ډله کې وشمېرو.
میرمسـجدي خـان غـازي د ۱۸۴۱ کال د نومبر په ۲۶ (۱۲۵۷ کال د شـوال ۱۱) له تپې کېدو وروسته وفات او د چاریکارو په ده قاضي کې خاورو ته وسپارل شو.




زده کوونکي دې د یرغلګرو په وړاندې د ملي مجاهدینو د مبارزو په اړه په خپلو کې خبرې اترې وکړي.




۱ - ولې افغانان د نورو ولسونو په پرتله پر خپل هېواد د پردیو له تېرې سره حساسیت لري؟
۲ - میرمسجدي خان ولې د انګلیسانو د انعام او مکافاتو بلنه ونه منله؟




زده کوونکي دې د میرمسجدي خان د مېړانې او مبارزو په اړه یوه مقاله ولیکي.

# د هېواد ځینې پوهنپال واکمنان



له پوهې سره مینه او بشري تمدن ته خدمت ښه انساني صفت ګڼل کېږي. د بشر په تاریخ کې په ټولیزه توګه او د اسلامي تمدن په تاریخ کې داسې مشران تېر شوي چې د پوهې په خپرولو او د پوهانو په پاللو او ستایلو کې یې ډېرې هڅې کړې او ښه نوم یې پرېښی دی.
په دغه لوست کې د افغانستان دوه مشهورې تاریخي څېرې درپېژنو.

## سلطان محمود غزنوي

سلطان محمود د سبکتګین زوی و چې په غزنوي مشهور دی، د نړۍ له مشهورو پاچاهانو څخه ګڼل کېږي. هغه په ۳۶۲ هـ.ق کال نړۍ ته سترګې پرانستې او په ۴۲۱ هـ.ق کې وفات شوی دی.
سلطان محمود غزنوي د پاچهۍ پر تخت له کښېناستو سره سم ورو ورو د خپلې خاورې لمن پراخه کړه او په نسبتاً لنډ وخت کې و توانېد لوی حکومت جوړ کړي، چې بریدونه یې د هند د نیمې وچې تر زړه او منځنۍ آسیا او د هغه مهال فارس پورې رسېدلي وو.
سلطان محمود یوازې د خپل وخت لوی فاتح او تکړه سرلښکر نه و، بلکې له پوهې او ادب سره یې هم ډېره مینه لرله او په دغه لارکې یې بشري فرهنګ ته لوی خدمتونه کړي دي.


سلطان محمود غزنوي

غزني د سلطان محمود پلازمېنه، د دغه مدبر او علم پالونکي پاچا په حکومت کې په یو مهم فرهنګي مرکز او د علم او ادب په زانګو بدل شوی و. د غزني ښار هغه

مهـال لويې ودانۍ، ويالې، بازارونه، باغونـه، جوماتونه او علمي مرکزونه لرل. ابوريحان البيروني، ابوالفضل بيهقي، ابو سـعيد گرديزي، خواجه احمد بن حسـن ميمندي، ابونصرمشکان غزنوي، عنصري بلخي، فرخي سيسـتاني، ابوالقاسم فردوسـي او نور پوهان او لوی اديبان، چې هر يو يې د خپـل وخت د علم او ادب په ډگرکې مشـهور وو، ددغـه علم او ادب پالونکې پاچا په زمانه کې اوسېدل.
سـلطان محمود غزنوي د اسـلام او افغانستان له وياړونو څخه يو وياړ دی او د علم په ډگر کې به د هغه خدمتونه هېڅکله هېر نشي.

## علي شېرنوايي

علـي شـېرنوايي زمـوږ د هېواد له نومياليـو وزيرانو او علمـي او ادبي شـخصيتونو څخه و. علي شـېرنوايي پـه ٨٤٤ هــ.ق. کال په هرات کـې، چې د تېموريانـو پلازمېنه او د علـم او تمدن له مهمومرکزونو څخه و، نړۍ ته سترگې پرانستې او په ٩٠٦ هـ. ق کې وفات شو.
علـي شـېرنوايي له هماغه وړوکتوبه د علم او ادب زده کړې تـه مخه کړه او د خپل وخت له نامتو استادانو څخه يې علوم زده کړل.
کله چې سـلطان حسـين بايقرا په ٨٧٣ هـ. ق کې پاچا شو، علي شېرنوايي يې خپل وزير وټاکه. نوايي سربېره پردې چې يو باتدبيره وزير و، د هېواد په چارو کې له پاچا سره مرسته کوله. د علم او پوهې په خپرولو او د مدرسـو او علمي مرکزونو په جوړو لو کې يې ارزښـتناک او نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي.
نوايـي پـه خپله ليکوال او شـاعر و، د عالمانو او اديبانو درناوی به يـې کاوه او د علم د خاوندانو په خدمت کې يې له هېڅ کاره مخ نه اړاوه.



امير علي شير نوايي

د هـرات د تېموري پاچهانو د علم پالنې او علي شـېرنوايي د علمـي خدمتونو په پايله کې، په ټول هېواد او په تېره بيا په هرات کې علمي او ادبي فضا او چاپېريال رامنځته شو چې د علم او ادب د سمسـورتيا او پراختيا او د تأليف او څېړنې او ابتکار د زمينو د رامنځته کېدو سبب شو. له هغو مدرسو څخه چې د دغه علم پالونکي وزير په نوبت جوړې شوې، د اخلاصيه، شـقائيه، خسـرويه او نظاميه مدرسې يادولای شو.
د علي شير نوايي بل مهم کار د مدرسو او علـمي مرکزونو،

زده کوونکو او پوهانو لپاره د اوقافـــو د تخصیص (پیســو) ډېرول وو. د دغو مرکزونو ملي عواید د علمي مرکزونو په جوړولو او د زده کوونکو او اســتادانو په لګښــتونوکې لګېدل. که د یوه هېواد چارواکـــي لـــه پوهې ســـره مینه ولري او دعلم او پوهـــې د خاوندانو درناوی وکـــړي او د زده کړو او څېړنو زمینه برابره کړي، په بشپړ باور ویلای شو چې د ناپوهۍ تیارې به له منځه لاړې او هېواد به پرمختګ وکړي.

د علم پالنه او د پوهانو درناوی د هېواد پالنې له نښو څخه دي.




زده کوونکـــي دې د غزنویانـــو او تېموریانـــو په زمانه کـــې په غزني او هرات کـــې د علم او تمدن د پرمختګ په اړه په خپلو کې خبرې وکړي.




۱- سلطان محمود غزنوي څوک و؟
۲- د سلطان محمود غزنوي د وخت دځینو پوهانو او ادیبانو نومونه واخلئ.
۳- علي شېرنوایي څوک و؟
٤- د پوهې او ادب په ډګر کې د علي شېرنوایي خدمتونه کوم دي؟
۵- د واکمن له خوا دعلم پالنه د هېواد په وده او پرمختګ کې څومره اهمیت لري؟




زده کوونکي دې د هرات او غزني د فرهنګي ارزښت په اړه مقالې ولیکي چې له لسو کرښو څخه لږه نه وي.

# زغم او د يو بل منل



انســان ټولنيز موجود دی، له نورو انسانانو پرته په ګوښې ډول ژوند نشي کولای. ټولنيز ژوند شرايط، غوښتنې او آداب لري چې د هغو له رعايت پرته ژوند ستونزمن کېږي. د ټولنيز ژوند له غوښتنو څخه يو هم زغم او يو د بل منل دي. په دغه لــوست کې به په دې اړه ګټور مطالب زده کړو.

زغم د ښو او انساني فضيلتونو له جملې څخه دی. څوک چې د نورو پر وړاندی له زغم څخه کار اخلي، خپل ځان او نور له ستونزو څخه ساتي.

زغـم پــه حقيقــت کې يو ډول صبــر دی چې زغم لرونکی انســان يــې د نورو انســانانو د ژوند د نابرابــرو او ناســمو غبرګونونو پر وړاندې کوي. په دې معنا چې کلــه کله، يو څوک په قصدي او يا هم غيرقصدي توګه بې دليله بل چاته مادي او يا معنوي زيان رســوي او د هغه د ناراحتۍ اســباب رامنځته کوي. که څه هم هغه څوک چې زيان يې ليدلی وي، حق لري قانوني مراجعو ته لاړ شي او هغــه څــوک چې تېری يې پرې کړی، د قانون منګولو ته وسـپاري او خپل حق لاســته راوړي، خوښه به دا وي چې، که زيان ډېرلوی نه وی، له زغمه کار واخلي او مقابل لوری د انتقام اخيستلو له قدرت سره سره وبښي.

د زغم او ځان تېرېدنې بل اړخ دا دی چې په ځينو موارد وکې ډېر ځله انسان اړکېږي، چې له نورو ســره يو ځای ژوند وکړي او له داســې کســانو ســره تعامل وکړي چې د کړنې، عاداتو او سليقې له پلوه له ده سره اختلاف لري. دغه حالت غوښتنه کوي چې انسان د ستونزو او جګړې او اړ و دوړ د نــه رامنځتــه کېدلو لپاره له صبر او ځان تېرېدنې څخه کار واخلي. د ټولنې د ګډ ژوند او ســولې

لپاره، ځینې چارې وزغمي چې د هغه له ذوق، غوښتنې او شخصي عاداتو سره همغږې ونه لري.
زغم او ځان تېرېدنه دګډ ژوند له مهمو اړتیاوو او د هېوادپالنې له عناصر و څخه دي. ښه سړی تل دخپلو هېوادوالو پر وړاندی له زغم او ځان تېرېدنې څخه کار اخلي او هڅه کوي د ټولنې د خلکو ترمنځ د فتنې او اړ و دوړ، نښتې او جګړې د رامنځته کېدو زمینه له منځه یوسي.
په هغو هېوادونوکې چې د زغم او ځان تېرېدنې فرهنګ شته، په سوله او وروری کې ژوند کوي، امنیت تأمین او سیاسی، ټولنیز، او اقتصادي ثبات واکمن وي. زموږ په دیني نصوصو کې که قرآن کریم دی او که نبوي حدیثونه، په وار وار په زغم، آسـانی او یو د بل په منلو ټینګار شـوی دی. د قرآنکریم او نبوي ســنتو له مخې یو ښــه مســلمان باید د صبر، زغم، معنوي کرم او خیر غوښتنې ښه خویونه ولري.
بې له شکه د دغو خویونو لرل په ټولنه کې د صبر، ځان تېرېدنې او د زغم د فرهنګ د دود سبب کېږي او آرامي او ټولنیز ثبات رامنځته کېږي.




زده کوونکي دې په پنځه کسیزو ډلو ووېشل شي، بیا دې د زغم او یو بل ته د درناوي په اړه په خپلو کې خبرې وکړي.




۱-زغم او یوبل منل وګړي او ټولنه له کومو ستونزو ساتی؟
۲- ولې زغم تر غچ اخیستلو ښه دی؟
۳- زغم د هېواد پرامنیت او آرامی څه اغېز لري؟




زده کوونکي دې د زغم او یو بل ته د درناوي د ګټو په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لســو کرښــو لږه نه وي.

## د افغانستان جغرافیایي موقعیت او د هغه ارزښت




زموږ ګران هېواد افغانستان د آسیا په زړه کې پروت او له ځانګـــړي ارزښت څخه برخمن دی.
آیا پوهېږئ چې افغانستان په شمال، سوېل، ختیځ او لـــوېدیځ کې له کومو هېوادونو ســــره ګډه پوله لري؟ دا هغه مطالــــب او مفاهیم دي چې په اړه به یې په دغه لوســـت کې معلومات ترلاســـه کړئ.

زموږ ښایســـته او ګران هېواد، افغانســـتان د آســـیا په مرکز یا زړه کې پروت دی. شـــمال لور ته یې ازبکســـتان، تاجکســـتان او ترکمنســـتان، ختیځ او ســـوېل ختیځ لوري ته د پاکســـتان له اســـلامي جمهوریت سره د ډیورند تپل شوې کرښه په نښه شوې چې افغان ولس هغه په رسمیت نه پېژني، لوېدیـــځ تـــه یې ایران او شـــمال ختیځ لور ته یـــې د چین د خلق جمهوریت پروت دی. افغانســـتان (۶۵۲۰۰۰) کیلو متر مربع مساحت لري.

افغانستان د همدغه مهم جغرافیایي موقعیت له مخې د تاریخ په اوږدو کې له ځانګړي ستراتېژیک ارزښـــت څخه برخمن دی او د مرکزي آسیا، ســـوېلي آسیا او منځني ختیځ ترمنځ د تمدنونو او د فرهنګونو د یو ځای کېدلو او جلا کېدلو د ســـیمې په توګه یې د ســـیمې د هېوادونو په اقتصادي، سیاسي ټولنیز او فرهنګي ژوند کې مهم رول لوبولی دی.

دغـــه مهم جغرافیایي موقعـــیت د دې سبب شـــوی، چې د نړۍ د لویو توسعه غوښتونکو، لکه داریوش، کوروش، مقدوني سکندر، چنګیز او مغولو پام ځانته راواړوي.

د افغانســـتان د اقتصادي ارزښـــت په اړه له دغه ځایه معلومات پیدا کولای شـــو، چې دغه هېواد د

وربښـــمو د لويې سـوداګريزې لارې په اوږدو کې پروت و، له منځنۍ آسـيا نيولې د آسيا تر سويل، منځني ختيځ او اروپا پورې اوږده سيمه يې نيولې وه. همدا راز افغانستان په سيمه کې د سوداګريزو اړيکو د يو ځای کېدلو د سـيمې په توګه مهم او بنســټيز رول لوبولی دی او د هندوستان د کونجي (کلي)، د تګلورې، ګذرګاه، لويې لارې په نومونو ياد شوی دی.

افغانستان د مــهم جغرافيايي موقعيت له امله د لــويو بشري تمــدنونو، لـــکه زردشتي، بودايي، يونان - باختري او د اسلام د ودې، پرمختګ او پراختيا په لاره کې مهم رول لوبولی دی.

نن په افغانستان کې ډېر قومونه او توکمونه، لکه پښتانه، تاجــک، ازبک، ترکـــمن، نورسـتاني، بلـــوڅ، پشه يي، هزاره، عرب، ايماق، افشار او... يو د بل تر څنګ د وروڼو په شان ژوند کوي او يو واحد ملت جوړوي.

د افغانســتان رسـمي ژبې، پښتـو او دري دي. د افغانســتان د خلکو دين اسـلام دی. د افغانستان پرخلکو خپل هېواد ډېر ګران دی، مينه ورسره کوي او د هغه د ودې او پراختيا لپاره هاند او هڅه کوي.




زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشـل شـي. لومړۍ ډله دې د افغانســتان د جغرافيايي موقعيت او دويمه ډله دې د هغو د ارزښت په اړه خبرې وکړي.




۱. د افغانستان څلور خواوې بيان کړئ؟
۲. د افغانستان مساحت ووايئ.
۳. د وربښمو لاره له کوم ځايه پيل او تر کوم ځايه رسېدله؟




زده کوونکـــي دې د افغانستان د جغرافيايي موقعيت او د تمدنونو په وده او انکشاف کې د هغو د ونډې د ارزښت په اړه مطالب تيار او په ټولګي کې دې ولولي.

# د شورى مقام او ګټې يې



شورى او مشوره د ټولنيز ژوند له مهمو اصولو څخه يو اصل دى. د تو پيرونو د له منځه وړلو لپاره سمې پرېکړې ته رسېدل په ډېرو حالاتو کې مشورې ته اړتيا رامنځته کوي. په مهمو پېښو کې چې د خلکو او هېواد له برخليک سره تړاو لري، بايد د ولس رايې ته مراجعه وشي.

په دغه لوست کې به د شورى او د هغې د ارزښت په اړه معلومات ترلاسه کړو.

شــورى د اسلام په ســپيڅلي دين کې له ثابتو اصولو څخه يو اصل دى او د مشورې او د کارونو په اړه د نورو د نظر پوښــتلو په معنا ده. په اســلام کې د شــورى پر اهميت د ټينګار لپاره په قران کريم کې يو سورت د (شورٰى) په نوم راغلى دى.

د قرآن کريم د لاربنــوونو پر بنســټ په کارونو کې مشوره کول د مؤمنانو له صفتونو څخه يو صفت دى. اسلام خپلو لارويانو ته امر کوي چې خپل کارونه د شورى له لارې پاى ته ورسوي. الله تعالى د مؤمنانو په اړه فرمايي: {وامرهم شــورى بينهم}، [ژباړه: يعني مؤمنان خپل کارونه د شــورى له لارې پاى ته ورسوي.]

د شــورى دايــره له کورنۍ پيلېــږي، په تدريجــي ډول پراخېږي او د ولس او حکومــت تر اړوندو موضوعاتو پورې رسېږي.

د کورنۍ غړي بايد د مشورې له لارې خپلې ستونزې هوارې کړي او د کلي او سيمې ستونزې بايد د کلي او خلکو د مشــورې له لارې حل شــي. په همدې توګه بايد د ولســوالۍ او ولايت د مهمو پرېکړو په اړه د خلکو نظر واخېســتل شــي. په مهمو او ملي برخليک جوړونکو مسايلو کې سمو او ګټورو پرېکړو ته د رسېدلو لاره يوازې د شورا او خلکو د رايې اخيستلو له لارې شونې وي.

د شورا د اصل پلي کول نه يوازې سمې او معقولې پرېکړې ته د رسېدلو لامل کېږي، بلکې په دغو پرېکړو کې د خلکو مرسته او ملاتړ هم ځانته جلبوي.

باید پوه شو چې د شورا په نشتوالي کې د ټولو خلکو پر برخلیک د یوه سړي نظر او استبداد حکومت کوي او د زور واکی، خپلسری او ځینو خلکو د طغیان او سرغړونې لار هواریږي او ټولنه او هېواد د تباهی او ضعف په لور ځي.

هرڅومره چې په ټولنه کې د شورا اصل ټینګ وي او په پلي کولو کې یې ډېرې هڅې وشي، په هماغه کچه ولس او هېواد له ځواک، ټولنیز، سیاسي او اقتصادی ثبات څخه برخمن کېږي.

په ټولنه او کورنۍ کې یو آرام او نېکمرغه ژوند ته د رسېدو لپاره لازم دي په کور، دفتر، کلي او ښار او د دولت او د حکومت په چارو کې د شورا اصل په یو ټولیز فرهنګي اصل واړول شي.

له هر ډول استبداد سره مبارزه او د شورا پر اسلامي او انساني اصل پابندي له هېواد او ولس سره د مینې معنا لري. په مختلفو ډګرونو کې د یوه پیاوړي او پر مختللي افغانستان د شتون لپاره په ټولو اړخونو کې د شورى د اصل پلي کېدل او په پام کې نیول لازم دي.

راځئ د شورى عملي کول له کور، ښوونځي او ټولګي څخه پیل کړو او خپلې ټولې پرېکړې د شورى له لارې ونیسو.




زده کوونکي دې په پنځه کسیزو ډلو ووېشل شي او د شورى د ګټو او د استبداد له زیانونو څخه دې یو لست جوړ کړي.




۱. شورى څه ته وایي؟
۲. د اسلام له نظره شورى څه اهمیت لري؟
۳. که شورى نه وي، د هغې پرځای څه شی واکمن کېږي؟
۴. ولې د شورى پر اصل ټینګار د هېواد په استقرار او ثبات کې رول لري؟




زده کوونکي دې د شورا او د هغې د ګټو په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.



# د ګران هېواد د رښتينو خدمت کوونکو ياد


داکتر عبدالوکيل


محمود طرزی

آیا کله مو سوچ کړی، هغه پرمختګ چې په ګران هېواد کې يې ګورو، څنګه لاسته راغلی او چا د هغې په معنوي او مادي ودانولو کې ونډه اخيستې ده؟

په دغه لوست کې هڅه کوو د هېواد ځينې رښتيني او مخلص خدمت کوونکي زامن وپېژنو.

د هېوادونو پرمختګ داسې کار نه دی چې په څو کلونو کې سرته ورسېږي. د يوه هېواد معنوي او مادي ودانول ډېر وخت ته اړتيا لري او د څو نسلونو د پرله پسې هڅو پايله ده.

هېواد د يوه لوی کور په شان دی. د کور ټول غړي، لوی او واړه د هغه د ودانولو لپاره کار کوي. په پای کې د دغې ودانۍ قوت او ښايست د هغو کسانو د نه ستړي کېدونکو هڅو او زيار پايله ده چې د هغه په ودانولو کې يې ونډه اخيستې او د دغه لوی کور، يعنې هېواد د جوړوونکو حيثيت لري. هغوی هر يو په خپل وخت او د خپلې کاري وسې تر بريده زموږ د هېواد د سمسورتيا او پرمختګ لپاره کار کړی دی. چا د ښوونې او روزنې په برخه کې، چا د کرنې په برخه کې، چا علمي او څېړنيز مهم کارونه سرته رسولي او د پوهنتونونو او لوړو زده کړو او علمي څېړنو په برخه کې يې کار کړی، ځينو هم په نورو ډګرونو کې لکه دين، سياست، اقتصاد، ښار جوړولو، فرهنګ او داسې نورو برخو کې ښکاره او د پام وړ لاسته راوړنې لرلې دي.

د هېواد د دغو خدمت کوونکو ياد، د هغو د ارزښتمنو کارونو ستاينه، د هغوی د کارونو پر ارزښت پوهېدنه، هغوی ته زموږ د وفادارۍ او درناوي نښه ده. دغه کار زموږ د نننيو او سبانيو نسلونو له شرعي او ملي د ندو څخه دی.

په لاندې کرښو کې د بېلګې په توګه د هېواد هغه رښتيني خدمت کوونکي شخصيتونه په لنډه توګه

یادوو چې هر یو یې په یوه تاکلي ډګر کې ولس ته ارزښتناک او د ستاینې وړ خدمت کړی دی.

## علامه محمود طرزي

علامه محمود طرزی زموږ د هېواد له مهمو شـخصیتونو څخه دی چې د ژورنالیزم او مطبوعاتو، بهرنیـو اړیکو، ډیلوماسـۍ او څېړنې په برخه کې یې نه هېرېدونکـې خدمتونه کړې دي. د بهرنیو چـارو د وزارت فعالول او د(سـراج الاخبار) د جریدې تاسـیس د علامه محمـود طرزي له ډېرو مهموکارونو څخه دي.

## غلام محی الدین انیس

غـلام محـی الدین انیس زموږ د هېـواد د مطبوعاتو د ډګر مهم شـخصیت و چې د انیس د ملي ورځپاڼې تاسیس د هغه له مهمو کارونو څخه ګڼل کېږي.

## مولوي عبدالغني

مولـوي عبدالغنـي، چـې د قلعۀ بلند مولـوی صاحب په نامه مشـهور و، زموږ د هېـواد له لوړو شـخصیتونو څخـه و. خپـل ژوند یې د شـرعي علومو په تدریـس کې تېر کـړی او د قلعۀ بلند د مشهورې مدرسې په جوړولو یې ډېر پوهان روزلي او ټولنې ته یې وړاندې کړي دي.

## علي احمدخان پوپل

زموږ د هېواد له علم پالونکو شـخصیتونو څخه و چې د ښـوونې او روزنې وزارت د مسـوولیت ترڅنګ یې د هېواد د پرمختیا او سمسورتیا لپاره بنسټیز کارونه سرته رسولي دي.

## پوهاند عبدالحی حبیبي

پوهاند عبدالحی حبیبي زموږ د هېواد ستر شخصیت او یو پوه او پېژندل شوی څېړونکی دی چې د څېړنې او تالیف په برخه کې ډېر اثرونه لري او د هېواد علمي او فرهنګي خزانو د ښوولو په برخه کې یې ډېره موده کار کړی دی.

## استاد عبدالرحیم نیازی

استاد عبدالرحیم نیازی زموږ د هېواد له نوابغو څخه و چې په خپلو علمي او ژورو وړاندوینو سره د افغانستان پروړاندې د وخت د شوروی اتحاد ناوړو نیتونو ته ځیر شوی و. د دغه ګواښ د مقابلې لپاره يې شــپه او ورځ علمي او فکري مبارزه وکړه. د اســلامي غورځنګ په جوړولو کې يې ډېره ونډه واخیســتله، چې وروســته يي زموږ پر هېواد د شوروي د ورانوونکي یرغل پروړاندې په مېړانه جهاد او مقابله وکړه.

## دکتور عبدالوکیل

اروابناد دکتور عبدالوکیل زموږ د هېواد د کرنې د ډګر له مشهورو استادانو او متخصیصنو څخه و چې ټول ژوند يې په خپلو هڅو د افغانستان د کرنې په پراختیاکې تېر کړی دی.

دکتــور عبدالوکیــل د کابل پوهنتون د کرنې د پوهنځي رئیس او اســتاد او د کرنــې وزیر په توګه د افغانستان ولس ته بنسټیز او عملي خدمتونه کړي دي. دکتور عبدالوکیل د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې او په ډېرو سختو شرایطو کې د خپل ملت ترڅنګ او د هېواد په چوپړ کې پاتې شو. له ټولو مادي امتیازاتو او آرام او هوســا ژوند څخه تېر شــو. له جسمي ناروغۍ سره سره يې کلو او بانډو ته تــګ راتګ کاوه او د غلو، دانو او ســابو د نوو تخمونو د دودولــو او نویو نیالګیو او مېوو په راوړلو کې يې له بزګرانو ســره مرســته کوله. د ډېرو ښو اوګټورو مېوو او سابو دودېدل چې نن په افغانستان کې دي، په تېره بیا زرد آلـــو، منې او الوچې د دکتور عــبدالوکیل د نه ستړي کېدونکو هلو ځلو برکت دی چې د جاریه صدقې په توګه به د هغه لپاره پاتې وي.

د هېواد د ټولو ملي شخصیتونو او خدمتګارانو یادول په یو لوست کې ناشونی کار دی، له دې امله د هېواد د ځینو ربنتینو زامنو نومونه چې هر یوه په خپل وار د افغانستان د پرمختګ لپاره ارزښتناك خدمتونه کړي، د بېلګې په توګه یادوو:

عبدالهادي داوي، دکتور عبدالحکیم ضیایي، شهید انجنیر حبیب الرحمن، مولانا شـــاه محمد رشــاد، مولانا خال محمد خسته، شهید مولوي حبیب الرحمن، پوهاند وفي الله سمیعي، مولانا محمد سلیم راغي، شهید سیف الدین نصرتیار، استاد مشعل هروي، استاد برشنا، عبدالله ملکیار، غلام محمد میمنګی، عبدالمجید زابلي، ، غلام محمد غبار، شــهید ډاکټر محمدعمر، مېرمن کبرا نورزایي، شــهید ســید اســمعیل بلخي، مولوي غلام نبي کاموي، غلام سرور ناشر، مولوي

محمد ابراهیم کاموي، شهید مولوی محمدشاه ارشاد، مولوي فضل من الله فضلي، فخرالمشایخ میاګل جان آغا، شمس المشایخ مجددي، شهید منهاج الـدین ګهـیځ او د هېواد نور خدمتګاران.

کله چې په هېواد کې ګټور شـیان ګورو یا د مادي او معنوي پرمختګ کومه نښـه وینو او یا له کوم شـته نعمت څخه ګټه اخلو، باید په یاد ولرو چې دغه ځیزونه ټول زموږ د پلرونو او نیکونو د هاند او هڅو پایلې دي. موږ باید د خپلو تېرو خدمتګارانو خدمتونه په یاد ولرو او د هغوی ښه کارونه د خپل ژوند تګلاره وګرځوو او د ښېنې دعا ورته وکړو.

ښــه او هېوادپال افغان کله هم د خپل هېواد رښــتیني خدمتګاران نه هېروي، ځکه د اســلام دین مسلمان ته له هغو کسانو څخه چې له ده سره یې نیکي کړې، د مننې په کولو امر کړی دی.




زده کوونکي دې له اړوند ښـار یا ولســوالۍ او ولایت څخه د هېواد د رښــتینو او مخلصو خدمت کوونکو د نومونو لست جوړ او د هغوی ارزښتناك خدمتونه دې ولیکي.




١. زموږ د هېواد پرمختګ د کومو کسانو د کار پایله ده؟
٢. د هېواد د رښتینو خادمانو د خدمتونو یادول د څه شي ښېلګه ده؟
٣. د هېواد زړه سواندي خدمت کوونکي پر موږ څه حق لري؟
٤. د ګران هېواد د تاریخ د لسو تنو ملي شخصیتونو نومونه واخلئ.
٥. دکتور عبدالوکیل څوك و او د هېواد لپاره یې کوم خدمت کړی دی؟




زده کوونکي دې د هېواد د ځینو هېوادپالو شــخصیتونو په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لســو کرښو لږه نه وي.

# اسلامي ورورګلوي



- ولې مسلمانان سره وروڼه ګڼل کېږي؟
- د اسلامي ورورګلوۍ مفهوم څه شی دی؟
- له اسلامي امت سره د مسلمانانو تړاو څه معنا لري؟
- زموږ ګران هېواد د اسلامي امت په منځ کې کوم دريځ لري؟

په دغه لوست کې به پر نورو مطالبو سربېره د پورتنيو پوښتنو ځوابونه هم پيداکړو.

الله ﷻ ټول انسانان له يوه پلار او موره پيداکړي او د ټول بشريت اصل او نسب حضرت آدم او حضرت حوا عليهما السلام ته ورګرځي. قرآن کريم په دې اړه فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾ {د حجرات سورة ۱۳ آيت}

"**ژباړه**: ای خلکو! موږ تاسو له يوه نر او ښځې پيداکړي ياست او تاسو مو قومونه او قبيلې ګرځولي ياست، ترڅو يو بل وپېژنئ. په رښتيا چې په تاسو کې خدای پاک ته هغه څوک نژدې دی چې ډېره تقوی ولري."

پر انساني اړيکو سربېره، بله ربېنه چې انسانان سره يوځای کوي، ديني ورورګلوي ده. اسلام د الهي اديانو د وروستي دين په توګه په ټوله نړۍ کې خپل لارويان د ايمان او عقيدې پر بنسټ وروڼه ګڼلي او له هغوی څخه يې يو موټی امت جوړ کړی دی.

قرآن کريم د مؤمنانو په اړه، چې له يو بل سره ورونه دي داسې فرمايلي: ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾

{الحجرات:١٠} [ژباړه: په رښتیا چې مؤمنان سره ورونه دي.]

بل ځای الله ﷻ مسلمانان سره یو امت ګڼلی. ﴿إِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ﴾ {الأنبياء: ٩٢} [ژباړه: په رښتیا چې ستاسو امت، واحد امت دی او زه ستاسو رب یم، نو یوازې زما عبادت وکړئ.]

اسلامي وروروګلوي هماغه ژوندی ایماني روح او ساده احساسات او عواطف دي چې یو مسلمان یې د بل مسلمان پر وړاندې په زړه کې لري. ددغه روح او احساس اغېزې په خیر غوښتنې، مرستې، ملاتړ، لاسنیوي، نصیحت او ګډو هڅو کې عیني انځور پیداکوي.

د اسلامي وروروګلوۍ نورې پایلې د مسلمانانو په منځ کې د قومي، نژادي، ژبنیو، سیمه ییزو او ټولنیزو دریځونو د اختلافات له منځه تلل دي؛ ځکه د خلکو په منځ کې د لوړوالي معیار (تقوی) ده چې ټولې ښېګڼې او فضایل پکې نغښتې دي.

مسلمان د خپل مسلمان ورور په خوښۍ، خوښ او په غم، غمجن کېږي. د افغانستان مسلمان ملت چې د اسلام له هماغو لومړیو څخه پر دغه دین مشرف شوی او د اسلام په خپرېدو او اسلامي تمدن ته یې په خدمت کې ډېرې سربښندنې کړې، د اسلامي امت مهمه برخه جوړوي. زموږ ملت تل د نړۍ د مسلمانانو ترڅنګ ولاړ دی او ټینګ ملاتړ یې کوي، لکه د فلسطین او د مسلمانانو د لومړۍ قبلې آزادي.

د اسلامي نړۍ د مهمو موضوعګانو د اوارولو لپاره د نړۍ له مسلمانانو سره زموږ د مسلمان ولس پیوستون یوه ځرګنده بېلګه ده، چې د اسلامي نړۍ له خاورې او مقدساتو څخه زموږ د ولس ملاتړ ګڼل کېږي.

افغانستان د اسلامي امت په منځ کې ځانګړی دریځ لري او د اسلامي هېوادونو د همکارۍ د سازمان (O.I.C) د جوړښت له پیله د دغه سازمان غړیتوب لري، ځکه دغه سازمان د اسلامي هېوادونو د یووالي او مرستو سمبول دی.

د مسلمان شخص د هېوادپالنې له غوښتنو څخه یوه داده چې ځان د ستر اسلامي امت یوه برخه ګڼي. هر هېوادپال افغان د خپل ملت ترڅنګ له اسلامي ملت سره هم مینه لري او د ټولو مسلمانانو د خیر او پرمختګ لپاره هڅې کوي.



**لنډيز**

بې اتفاقي د مسـلمانانو د کمزورۍ لامل کېږي. له همدې امله خدای پاک مسلمانان له اختلاف څخه منـع کړي او فرمايي: ﴿واعتصموا بحبل الله جميعاً و لا تفرقوا﴾ {ال عمران ١٠٣} [ژباړه: د خدای پاك په رسۍ(قرآن کريم) منګولې ولګوئ او بې اتفاقي مه کوئ.]

حضرت محمدﷺ په يو حديث شريف کې فرمايي: [مثل المؤمنين في توادهم و تعاطفهم و تراحمهم کمثل الجسـد الواحد اذا اشـتکى منه عضو تداعى له ساير الجسد بالسهر و الحمى] ژباړه: مؤمنان په دوسـتۍ او مهربانۍ کې يو تر بله د يو تن په څېر دي، هرکله چې د تن يو غړی په رنځ اخته شـي، د تن نور غړي ورسره په بې خوبۍ او تبه کې رنځېږي.




زده کوونکي دې د مضمون د اسـتاد په مرسـته په ډلو کې د مسلمانو ملتونو ترمنځ د ورورګلوۍ په اړه بحث وکړي.




١- هغه رېښه چې مسلمانان سره يوځای کوي، کومه ده؟
٢- د اسلامي ورورګلوۍ عملي ګټې او موخې کومې دي؟
٣- يو مسلمان د اسلامي امت د قضاياوو پر وړاندې څه دنده لري؟




د ورورګلوۍ په اړه مقاله وليکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.

# د چاپېریال ساتنه



زده کوونکي به په دې لوست کې د استوګنې له چاپېریال، د استوګنې د چاپېریال له مهمو پدیدو او د استوګنې د چاپېریال له ساتنې سره او د هغو په ساتنه کې د انسانانو له ونډې سره آشنا شي.

د استوګنې چاپېریال د ځمکې هغه ټاکلې سیمه ده چې د انسانانو، الوتونکو او د وچې او اوبو د حیواناتو د ژوندانه د تېرولو لپاره یې مناسبه حیاتي زمینه برابره کړې ده.

د استوګنې په چاپېریال کې مهمې حیاتي پدیدې دا دي:

- د ژوندانه د دوام لپاره د یوې سیمې طبیعي موقیعت،
- د خاورې شتون،
- د تنفس لپاره د مناسب اکسیجن او هوا شته والی،
- د بېلابېلو حیواناتو شته والی،
- مطلوبه او مناسبه آب او هوا،

په طبیعت کې دغه ټولې پدیدې په متقابل ډول د ژوندانه په وده او پراختیا کې عمل کوي. انسانان د اشرف المخلوقات په توګه د دغه حیاتي سیستم په محور کې ځای لري او له هغه څخه د ګټې اخیستنې په څرنګوالي کې اساسي ونډه لري. له دې امله د انسان د استوګنې چاپېریال د ځمکې پر مخ د هر انسان لپاره د اوسېدو او روزنې اصلي ځای ګڼل کېږي، د مور په څېر یې هر یو په غېږ کې نیولی او په وده او روزنه کې یې ارزښتناکه ونډه لري. له دې امله د زېږېدو ځای او هغه چاپېریال ته درناوی چې انسان پکې ژوند کوي او له نعمتونو څخه یې ګټه اخلي، یوه اخلاقي او انساني وجیبه بلل کېږي. باید هر هېوادپال افغان د چاپیریال په ساتنه کې ځان مسؤول وګڼي.

له ککړتیا څخه د استوګنې د چاپېریال پاکوالی په درېو اصلونو باندې ولاړ دی:

- له ککړتیا څخه د هوا پاک ساتل،
- د جاري اوبو او اوبلنو (مایع) عناصرو پاک ساتل،
- له ککړتیا او زیانمنو عناصرو څخه د خاورې پاک ساتل.

باید زیاته کړو چې زموږ د ژوندانه د تنفس او پایښت لپاره د اکسیجن ګاز او پاکه فضا یو مهم رکن جوړوي، له دې پرته ژوند له منځه ځي. اړینه ده چې د ځمکې هوا د سون د توکو، د ډېرو سکرو، پلاستیک، د ټیرونو او ربړونو د سوځولو له ککړو دودونو څخه ځان وساتو. ګلخانه یي ګازونه، لکه کاربن ډای اکسایډ، کاربن مونو اکسایډ، متان ګاز او نور زیان لرونکي ګازونه چې له ماشینونو او کارخانو څخه وځي او هغه ګازونه چې د خځلو له انبارونو څخه په ښارونو او کلیو کې رامنځته کېږي، باید له زیانونو څخه یې انسانان او ځاروي وساتو.

د هغو ګازونه مخه ونیول شي، چې د موټرو له ماشینونو او عراده جاتو څخه رامنځته کېږی او یا د خښتو له بټیو او حیواني محروقاتو څخه فضا ته داخلېږي، هوا ککړوي او د سیمې اوسېدونکي له ډول ډول ناروغیو سره مخامخوي.

هغه اوبه چې د هایدروجن او اکسیجن له ترکیب څخه جوړېږي او یوه حیاتی ماده ده، باید په مکروبونو ککړې نشي. باید د څښلو اوبه صحي وي چې په انساني او حېواني ټولنه کې د ناروغیو د خپرېدو مخنیوی وشي. د ژوندانه په دوام کې د حیاتي مادې په توګه مرسته وکړي. له دې امله اړینه ده چې جاري اوبه، د ځمکې لاندې اوبه او د ویالو او سیندونو اوبه ککړې نه کړو، پرته له دې د انسانانو او حېواناتو روغتیا ته زیان رسوي، د ناروغیو خپرېدل چټکوي او د کرنې تولیدات او د اوبو ژوي مسموم او اغېزمن کوي.

خاوره د استوګنې د چاپېریال یوه بله مهمه حیاتي ماده ده چې د انسانانو، حېواناتو او په ځنګلونو او دښتو کې د وحشي حېواناتو له ژوند سره مستقیماً اړیکې لري. حاصل ورکوونکې خاوره چې په هغو کې عضوي مواد ډېر وي، په کرنه کې د کرنې د تولیداتو لپاره مناسب چاپېریال رامنځته کوي. کوښښ باید وکړو چې خاورې له تېزابي کېدو څخه وساتو. هغه خاوره چې د سیلابونو بهېدو ته ښېرمه وي، که چېرې د هغوی مخنیوی ونشي، نو کرنیزې ځمکې به له منځه لاړې شي.

له هېوادپالنې سره په تړاو ښایي د اوبو، خاورې او هوا ارزښت درک کړو او په مجموع کې د استوګنې خپل چاپېریال له طبیعي خطرونو او ککړتیا څخه وساتو چې له یوې خوا زموږ د استوګنې

چاپېریال د ژوندانه لپاره ښه شي او له بلې خوا د یوه هېوادپال په توګه د خپلې خاورې او هوا پر وړاندې خپل مسوولیت سرته ورسوو او درناوی یې وکړو.




زده کوونکې دې په دوو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې د استوګنې د چاپېریال په اړه څرګندونې وکړي او دویمه ډله دې د استوګنې د چاپېریال د مهمو حیاتي پدیدو نومونه واخلي او پایله دې په ټولګي کې ووایي.




۱. خاوره د استوګنې په چاپېریال کې څه ونډه لري؟
۲. څنګه د هیواد د ککړتیا مخنیوی وکړو؟
۳. د اوبو ککړتیا د انسانانو ژوندانه ته څه ډول زیانونه رسوي؟

# د حکومت پر وړاندې د خلکو د ندې



د حکومــت پــر وړاندې د خلکو دندې د ټولنې د ســوکالۍ او نېکمرغــۍ او د وګړو ګټو موخو ته د رسېدو لپاره له مرستې او کوښښ څخه عبارت دي. خلك او حکومت له يو بل سره متقابلې اړيکې لري. حکومت د خلکو له مرســتې پرته خپلې دندې او ماموريت په ســمه توګه سرته نشي رسولای او خلك هم د حکومت له مرستې پرته خپل سياسي، ټولنيز، اقتصــادي او فرهنګي ژوند په سمه تــوګه پر مخ نشي وړلای.

په دې لوست کې به د حکومت پر وړاندې د خلکو د دندو په اړه مطلب ولولو.

## د نظام پر وړاندې د خلکو مهمې دندې په لاندې ډول دي:

**۱. قانون ته درناوی**: قوانينو ته درناوی په ټولنه کې د پرمختګ او امنيت لامل کېږي. قانون ته غاړه نه ايښودل بې نظمي رامنځته کوي چې په بېلا بېلو برخو کې د بېوزلۍ او وروسته پاتې والي سبب کېږي او زيان يې د ټولنې ټولو خلکو ته رسېږي. که په يوه هېواد کې سم حکومت وي، خو خلــك د قانون درناوی و نه کړي، هېڅ ډول بدلون، پرمختګ او اصلاحات به رامنځته نشي. په داسې دولت کې د کارونو سرته نه رسول او د قانون ماتول منځته راځي چې د خلکو خير او ګټه پکې نه وي.

**۲. له دولت څخه ملاتړ**: د دولت پر وړاندې د خلکو يوه مهمه دنده د پرديو د توطيو، دسيسو او تېريو پر وړاندې د نظام ساتنه ده. که دښمن وغواړي زموږ د نظام د نسکورولو لپاره په توطيو او جګړو لاس پورې کړي، زموږ خلك د جګړې ډګر ته راوځي او په جهاد، سربښــندنو او شــهادت ســره له خپل حکومت او نظام څخه ساتنه کوي. د انګلستان پر وړاندې د افغانستان لومړی دويمه او دريمه

جګړه، د شوروي اتحاد په وړاندې جهاد او درېدل د تېرې کوونکو په وړاندې زموږ د خلکو د هیواد ساتنې څرګندې بېلګې دي.

**۳. له دولتي ارګانونو سره مرسته**: هر دولتي ارګان د ملي ګټو د تأمین او ساتلو لپاره رامنځته کېږي او د ټولو خلـــکو په خدمت کې وي. پارلمان د قانون د ترتیب او تدوین دنده لري. بېلا بېل وزارتونــه د هېواد او خلکو د ترقۍ، پرمختګ او نېکمرغۍ ضامن وي. قضایي بنســټونه او ادارې د خلکو تر منځ اختلافونه او نښتې په عادلانه ډول حل او فصل کوي. پولیس کورنی امنیت تأمینوي. ملي اردو د هېواد د پولو دفاع او ساتنه کوي. د هېواد پر ټولو وګړو او بچیانو لازمه ده چې د خپل دولت له ادارو سره مرسته وکړي.

**۴. له حکومـــت څخه اقتصادي ملاتړ**: د خلکو بله دنده له حکومت ســره له اقتصادي او مالي پلوه مرسته کول دي. حکومت د خلکو خدمتګار وي او د خپلو دندو د سرته رسولو لپاره مالي لګښـــت ته اړتیا لري. د دغو اړتیاوو د پوره کولو لپاره پرعایداتو باندې مالیات ږدي؛ له دې امله ښـــایي ټول خلک په ربښتیني ډول مالیه ورکړي.

**۵. په لګښت کې سپما**: د خلکو یوه بله دنده په لګښت کې سپما ده. خلک باید د ډېرو اوبو، برېښنا، غوښې او نورو لومړنیو توکو په لګښت کې سپما وکړي. که چېرې د اوبو نل خلاص وي، باید بند شي، چې د زیاتو اوبو د له منځه تلو مخه ونیول شي. هغه ټولنه چې له اسراف څخه ځان ســـاتي له حکومت ســـره د غذایي توکو د تأمین او د نورو اړتیا وړ توکو مرســـته کوي. د کور مېرمن چـــې د غذایي توکو او نورو مصرفي توکو ســـپما کوي په حقیقت کې د کـــور او د هېواد له اقتصاد سره مرسته کوي.
د اسلام ستر پیغمـــبر، حضرت محمدﷺ فرمایلي دي:((ما عال من اقتصد)) ژباړه: څوک چې په لګښت کې سپما کوي، احتیاج شوی نه دی.

**۶. د دندې په ســـرته رســـولو کې زیار او هڅه**: د ټولنې هر وګړی دنده لري، هغه کار چې ورته وســـپارل شي، په ښه توګه سرته ورســـوي، مثلاً زده کوونکي چې دنده یې لوستل او زده کـــول دي، باید په خپلو لوســـتونو کې زیار وباســـي. هغه کارګر چې پـــه فابریکه کې کار کوي، دنده لـــري چې د تولیداتو په زیاتوالي کې زړه سواندی کوښښ وکړي، چې د تولیداتو لپاره د ټولنې اړتیا پـــوره کـــړي. خلک او دولت متقابلې دندې لري، له متقابلو دندو او مرســـتو پرته د نېکمرغه ژوند

دوام ناشونی دی.
له ښاروالۍ او خپلو ترافیك پولیسو سره ملګري واوسو. د ښار د پاکوالي په برخه کې هڅه وکړو. د خپل کور تر څنګ ونې کېنوو. د سرکونو، ویالو، پارکونو او عمومي باغونو تر څنګ خځلې وانه چوو، بلکې په خپلو ټاکلو ځایونو کې واچوو. که چېرې ګاونډي او یا نور څوك خځلې د کورو تر څنګ په ویالو کې اچوي، په پوره درناوي ورته باید ووایو چې خځلې په خپل ځای کې واچوي. په باغچو، د کور او د خپل ښوونځي په شاوخوا کې ګلان وکرو او ښه څارنه یې وکړو. ونو ته زیان ونه رسوو. که موټر چلوونکي واوسو، د موټر چلولو رسمي اجازه لیك واخلو. د سړك په هر ځای کې ونه دریږو، ترافیکي قوانین مراعات کړو.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې له حکومت سره د خلکو د مرستې په هکله او بله ډله دې د دولت د مسوولیتونو په هکله خبرې وکړي او پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.




۱. له حکومت سره د خلکو د مالي مرستې ډېره ارزښتناکه لاره په کوم ډول سرته رسیږي؟
۲. د سیما په هکله د پیغمبرﷺ حدیث له ژباړې سره ولیکئ.
۳. خلك باید له دولت سره څنګه مرسته وکړي؟ په دې برخه کې معلومات وړاندې کړئ.